بسم الله الرحمٰن الرحیم

# سکروټې په ایرو کښې

(شعري ټولګه)

محمد خلیل مهجور مسید

# ترون

د هغو بې درکه پښتنو په نوم چې تر مودو مودو په خپل وطن کښې بې درکه دي- او خویندې، میندې یې د راتلو لارو ته ګوري-

په تا به بوټي زرغونه وي
زۀ خواره هیله د راتلو درته لرمه

# ټول حقونه دلیکوال سره خوندي دي


| | | |
|---|---|---|
| دکتاب نوم | : | سکروټې په ایرو کښې |
| لیکوال | : | محمد خلیل مهجور مسید |
| اول چاپ | : | ۲۰۲۱م |
| کمپوزنګ | : | ریاض ساحل(03412311323) |
| ټائټل | : | حمد الله (خوازه خېله بازار، سوات) |
| شمېر | : | ۱۰۰۰ |
| بیعه | : | ۲۵۰ روپۍ |

د مېلاوېدو درک:

- یونیورسټي بک ایجنسي پېښور
- اباسین کتاب پلورنځایې (قصبه کالونۍ) کراچۍ
- صاحبزاده سټېشنرزاېنډبک سیلرز ډېره اسماعیل خان
- عبدالله بک ایجنسي بولان مارکیټ ټانک-خېبر پښتونخوا

# سرلیک

بسم الله الر حمٰن الرحیم

وایي د مشرانو خبرې د کاڼي کرښې وي - متل دای - " د لمر پهٔ وړانګو کښې ډېوې بلؤل کار د حماقت دای" بېشکه ساده توب خو خود دای چې پر آسمان ځلانده لمر وي ،او یو څوک پهٔ ورغوي ډېوه ګی ګرځوي خلکو ته د لمر وړانګې ښایي -- بالکل همدغسې د ادب د یو ادنا وګړکي تاثرات د یو لوړ ادبي شخصیت په باب بې معنا او بې ارزښته وي -

د یو چا په ژوند ، شخصیت،علومیت او چوپړ لیکنې هسې هم مشکل کار دای او بیا چې یو زده کوونکی د ښوونکي په حقله یا مرید د خپل پیر په باب قلم پورته کوي په تور ژمي تخرګونه خولې کوي او بیا چې د هاړ تاودهٔ سبا ، بېګا وي او پهٔ هسې تاودشت کښې په ایرو کښې د سکروټو چڼؤل وي - خولې څهٔ چې لکه د اهنګر په بټۍ کښې د اوسپنې ویلوَل دي -

موږ د غرونو خلک یو غرونو کښې ګرځېدل راګرځېدل سره بلد یو- کله کله به چې په چګو غرو ختلو بیا مو اول د لارې تعین کولو چې له کوم لوري به خېژو-

د علیقدر محترم زما پیر او غایبانه استاد محمدخلیل مهجور صېب شخصیت هم هغه لوړ غر دای چې سړای وارخطا کوي چې د شتمن شخصیت یې په کوم اړخ اول خبره پېل کړم -

د عالیقدر محمد خلیل مهجور صېب پیژندګلوي زموږ و خلکو (وزیرستانیانو) ته څهٔ خاص اړتیا نهٔ لري ځکه چې دې هغه د نوم او نېکنامۍ سره زموږ وارهٔ زارهٔ بلد دي- البته د وزیرستان نه بهر پښتنو ته د ور پېژندلو په خاطر دې علیقدر له تعارف پېل کؤم -

د علیقدر خپل نوم محمد خلیل دای په کلي - ګاونډ کښې د استاد خلیل یا ډاکټر خلیل په نوم پېژاندۀ شي- او د ادب په نړۍ کښې یې ځان ته د مهجور تخلص خوښ کړای دای-مهجور صېب په قام مسید/ ماسید دای-په ماسید کښې منزای دای او بیا پۀ منزي کښې د برومي خېل قبیله سره تعلق لري- د وزیرستان په منځنۍ منطقه ډیلې/ شنکۍ کښې یې د مارچ په 15مه نېټه کال 1951 کښې د نوموړي اروابناد محمد یعقوب خان په دیني کورنۍ کښې سترګې وغړولې- د عالیقدر مهجور صېب نیکۀ چې وزیرستان کښې د " ابا" پۀ نوم پېژندۀ شو یؤ لوی ولي الله تېر شوای دای- همدغه لامل دای چې پۀ ګړده منطقه کښې د علیقدر کورنۍ ته خلک د قدر پۀ نظر ګوري -

استاد مهجور صېب لومړنۍ زده کړې په خپل کلي کښې تر سره کړې بیا تر اتم ټولګي پورې دې کړمه مډل اسکول(منځنۍ ښوونځی) کښې پاتې شو او د هایي سکول (عالي ښوونځی) کانیګرم نه یې په کال (1965-66) کښې د لسم ټولګي سند تر لاسه کړو -

دا رنګ یې د ټانک کالج ( پوهنځی) کښې د دولسم ټولګي پورې زده کړې وکړې او بیا کال 1969 کښې یې په وانۀ کښې د ډسپنسر د تربیې سند واخیست -

د ډسپنسر د تربیه نه پس هغه په کال 1970 کښې جمرود خېبر ایجنسۍ کښې په دارالمعلمین / ایلیمنټري کالج کښې داخله واخیسته او په تکمیل یې په کال 1971 کښې د نوښار تحصیل اضاخېل کښې په حېث د یو معلم / ښوونکي کار پېل کړ -

بیا د ښوونکي په حېث وزیرستان ته راغے او د خپل کلي سره دوه درې کلومیتره نژدې هایي سکول شنکئ کښې یې د درس او تدریس کار پېل کړو- هغه د تدریس په علومو کښې د سي ټي او بي ایډ سندونه هم

اخیستي دي - مهجور صېب تر ریټایرمنټ پورې د درس او تدریس مبارکې دندې سره وابسته پاتې شو او بیا په کال 1998 م کښې د کورني مشکلاتو لامله د حکومتي خدماتو نه رخصت/لاس واخیست-

علیقدر مهجور صېب د درس او تدریس نه علاوه په نورو وختونو کښې د طبابت کار هم کاوۀ - هغه یو تکړه منلے حکیم او طبي ماهر هم دای د کلي په خوا کښې د "ډیلې بازارګوټې" کښې یې تر هغه وخته دغه انساني خدمت کاوۀ چې نابېره په ګړد وزیرستان یوه توره سیلۍ راغله او وزیرستان ړنګ شو - مهجور صېب هم لکه د نورو کلیوالو په نۀ زړه له کلي کډه وکړه او اول ټانک - ډېره اسماعیل خان کښې دېره شو چې د وطن د رغېدلو/جوړېدلو امید یې پاتې نۀ شو د سمندر و غاړه کراچۍ ته یې کډه وکړه او نن سبا د کراچۍ په ستر ښار کې د ژوند پاتې سبا بېګا اړوي - او باوجود د ناروغۍ او زړبوډۍ د خلکو پۀ کلک اصرار او غوښتنه دارو درمل مریضانو ته ورکوي-خدای متعال ج دې صحت ورکړي چې له فبضه یې تر ډېره برخمن و اوسو- آمین

مهجور صېب لا د اتم ټولګي زده کوونکے ؤ چې شاعري یې پېل کړې- علیقدر اولنی نظم د ۱۴ اګسټ په ورځ کال1964 کښې د (د آزادۍ پۀ ورځ) سرخط لاندې مډل سکول کړمه کښې پېش کړو- دې هغۀ ډېره شاعري ضایعه شوې ده - علیقدر وایي پۀ زرهاو اشعار یې د نژدې تېر وختونو ستر زیانمن جنګ او جدل لامله ضایه شؤل- او یوه حصه یې بچ پاتې شوه - چې هغه یې هم ډېره په منت زارۍ او خوارۍ تر لاسه کړه - دا هغه ټوټې ټوټې را ټوله کړې شوې شاعري ده چې د پخوانو وختونو رنګ پرې غالب دای - البته څۀ مواد داسې هم شته دای پکښې چې د حالاتِ حاضره درک پکښې موندل کېدای شي -

پۀ دغه شعري ټولګه "سکروټې په ایرو" کښې د هغو زمانو لیک هم شته دای چې علیقدر د شپږم - اتم ټولګې زده کوونکای ؤ-د هر زمان یو ځانګړای خپل انداز وي چې د ګړد ژوندون احاطه کوي-د یوې ټولنې ادبي رنګ هم هرومرو دې هغې طرز یا انداز تر تاثر لاندې رادرومي- استاد مهجور صېب د خپل دور یو تکړه او ځیرک شاعر دای - د علیقدر شعري ټولګه دې خپل دور عکاسي کوي او پۀ ډېر ښکلي انداز کښې یې د خپل دور ترجماني کړې ده -

لکه څنګه د وخت پۀ تېرېدو بدلون یو قدرتي عمل دای همدغسې د ادب انداز هم د زمانې د غوښتنو سره بدلیږي را بدلیږي-

د علیقدر شاعري کښې ډېره سادګي ده د ټکو انتخاب یې خوندور دای عام فهم لیک یې کړای- مشکل پسندي نۀ خوښوي- د قام، اولس په ژبه کښې شعر یې لیکلاي - ده تر خپله وسه کوشش کړای چې په شعر کښې د ابهام نه ځان و ژغوري ګونګای شعر نۀ ولیکي - مهجور صېب د قام اصلاح غواړي ظاهره خبره ده قامونو کښې عوام زیات وي د خواصو په پرتله - ځکه ده کوشش کړای چې ببخي ساده الفاظو کښې خپل پېغام تر اولس ورسي-ځکه چې د ده د شاعرۍ اصل موخه یا هدف د قام اصلاح ده- ځان ښوونه یا داسې شاعري نه ډډه کوي چې د قاموسونو له سینو را ایستلي، پور را وړي،ګران او پردو ټکو باندې بار وي - باوجود د دې چې هغه یو معلم پاتې شوای او د پنځو ژبو معیاري پښتو ،اردو ، عربي، فارسي او انګلیسي لیک لوست کښې پوره مهارت لري -

د علیقدر مهجور صېب په لیک کښې د پخوانۍ املا رنګ غالب دای - پخوا زمانو کښې به د شعر دننه جوړښت پۀ حواله د قیود او حدود پابندي کېدله خو دومره هم نۀ وه څومره چې ننني وختونو کښې لکه د "ینګې" پړای ترېنه جوړ شوای دای- دا وجه ده چې د علیقدر مهجور صېب

په شاعرۍاو هم په املا کښې د کلاسیک دور اثار جوت ښکاري- علیقدر له اویاو بره عمر کښې راهي دای څکه و سپېڅلو پخوانو پخوانو ته نژدې پاتې شوای- لهذا په کتاب کښې به پخوانی رنګ غالب وي خو د دې دا مطلب هم نۀ دای چې مهجور صېب د نوي انداز سره بلد نۀ دای خدای متعال ج دومره استعداد ورکړای چې د منثور او منظوم لیک پۀ هر صنف کښې یې طبع ازمایي کړې حتا چې ازاد نظم او د هایکو غوندې نوي طرزونو کښې هم ساه بندي نۀ محسوسوي- خو متاسفانه چې پۀ وطن راغلې د بدبختۍ سیلۍ د علیقدر رنګا رنګ ګلدستې نۀ وای ماتې کړې-

دلته که زۀ د یوې نۀ هېرېدونکې خاطرې/ یاد ذکر نه وکړم- لوی خیانت به وي زما د خپلو احساساتو سره او هم د علیقدر د عمرونو لیکنو سره چې خاورو کښې خاورې شوې دي- هغه داسې چې،مجهور صېب ټینګار راباندې وکړ-چې وزیرستان ته لاړ شې زما د کور زیارت هم وکړه که زما کوم لیک درته په لاس دراغے هغه درسره خوندي کړه او ما ته یې را ولېږه- خدای توفیق راکړ وراغلم د کور دروازه کښې کولپ ؤ- خلاص مو کړ انګڼ کښې ودرېدم داسې راته محسوس شوه کومه هدیره کښې ولاړ یم د کور دیوالونه غمځپلي وو-تا به ګمان کاوۀ د کور هر کونجای ماتم کوي- د علیقدر د ناستې ځای/ کوټه زنځیر مو خلاص کړ- لکه د خوبونو پۀ دنیا کښې سرای ګډ شي-لکه څوک دې چې دریاب ته ور دیکه کړي او د اوبو پۀ څرخنې کښې راګېر شې- په کټونو بسترې پراتې وې خو لکه د خاورو مخونه/ غلافونه ور واغوندې -د علیقدر لمارۍ له کتابونو ډکې وې خو د واینو/ اینو زور ؤ- زیاتره کتابونه واینو خاورې کړې وو چې و کوم کتاب ته به دې ګوتې وروړې د خړو دوړو سره به پر زمکه راتوی شو - ځینې کتابونو باندې د کوټې چت نه د باران څاڅکي را څڅېدلي او پۀ لمارو کښې داسې ویلې شوو وو چې تا به ګمان کاوه د لمارۍ خپله حصه ده -

دلته د جنګ هغه برکات او ثمرات را معلوم شول چې مونږ ته پۀ برخه کښې و رسیدل -

د علیقدر فقط یو نظم چې دۀ 1970ء عشره کښې د حیات اباد/ پېښور په یوه روغتون کښې لیکلای وۀ چې علیقدر د ناروغۍ پر بستر پروت ؤ نور د دومره لویې خزانې څخه زۀ خالي لاسونه را ووتم کومه چې علیقدر مهجور صېب له کال 1965 راهیسې خوندي ساتله او وخت پۀ وخت یې په خپلو زرینو خیالاتو احساساتو پراخوالی ورکاوۀ- نن پکښې پرته له خړو خاورو او دوړو بل څه پۀ لاس نه راغلل- دا هغه لویه سانحه ده چې د یو لیکوال فکرونه او احساسات پکښې وژل شوي دي- جنګونه که یو لورای انسانان وژني - ورانۍ جوړوي بل لورای که انسانان ژوندي هم پاتې شي د هغوي فکرونه ورله و وژني-د علیقدر مهجور صېب د دغې لویې ادبي اثاثې په ضیاع که موږ د هغۀ د لیک هر هر ټکای و ژاړو - ازاله یې ممکنه نۀ ده-

نور دې جنګونه نۀ وي - جنګونه د بربادۍ نوم دای- جنګونه د تباهۍ نوم دای-

د علیقدر مهجور صېب کوم چاپ اثار نشته البته غېر مطبوعه مواد و کښې د "جامدین کاکا لیکونه" د وزیرستان د آزادۍ په زیار او قربانیو یو ناول " زما بې وسي او زما آزادي" او یوه واړه غوندې افسانه "تللي تللي خلک" شامل دي -

د علیقدر شعر او شاعري ډېر اړخیزه ده -د جلا جلا رنګونو یوه شنه سره زرغونه ده- د دینیت ، قامیت، وطنپالۍ،د بې وزلو انسانانو په بدحالۍ د زګیروي - د استبداد په خلاف د سرغړوني او په اوړو کښې د مالګې په مقدار چې د شعر خوند پر خپل ځای وساتي،د رومانیت یوه اعلا مرقع ده-

کـه دلتـه د مهجـور صـيب د هـر اړخيـزې شـاعرۍ نـه د حوالـو او اشارو پـه صورت کښې پـه مثل د "مشت نمونه خروار" را وانخلو ، لوستونکي خوند نۀ شي ترېنه اخيستلای-

عليقـدر پـه نظـم - غـزل دواړو کښـې برلاسـي لـري او پـه دواړو صـنفونو کښـې د مقصـديت او پيـامبرۍ صفت څرګنـد او واضـح سـاتي - د بېځايه هرزه ګويۍ- مبالغې او صنايع و بدايع نه د قلم نوکه ژغـوري او شـعر کښې د خوند سره د پند موخه هم نۀ هېروي - عليقـدر وايـي لا د اتـم ټولګي زده کوونکی وم چې د تخيل وړو وړو مېږو نارامه کړم- ظاهره ده چې څوک دومره وړوکوالي کښې د شعر ښاپېرۍ تـه پـه نظر کښېوځي تـر زړبوډۍ بـه څومره تجربات ځان سره خوندي کړي ځکه د يو هسې شاعر په شاعري کښې پاخوالای هم و کوم صناعي توريو کښې ژباړلو ته اړتيا نۀ لري -

ځواني د هر چا ميراث دای څوک هـم ترېنـه بې برخې کيـدلای نۀ شي - او د ځوانۍ عمر هغه ښايسته عمر دای چې تر اخره يې هم سړای ارمان کوي -

د مهجور صيب کتاب کښې اولنۍ برخه کښې غزلونو تـه دويمـه کښـې تـودو نظمونـو او د پـای برخـه کښـې يـې قطعـات او هـايکو تـه ځـای ورکړای-

ځکه دلته د مهجور صيب د ځوانۍ د غزلونو څخه نمونې را اخلو -

عليقـدر غـزل هـم داسې ليکلي چې پـه هر بيت يې ځانتـه مقالـه ليکله شي- دې هغۀ په غزل کښې هم د قاميت - وطنپالۍ رنګ غالـب دای - زياتره غزل يې د رومانوي رنګونو نـه پـاک دي ټکي يې اسان مګر پـه معنـا ترينګلي کارولي دي -ګويا غزل يې هم انقلابي دي -

يوه غزل کښې د خپلو احساساتو ذکر داسې کوي:

څه خو مې خیال د پاتې شویو ارمانونو ساته
ډېر پوره شوي دي مرګیه بس یو څو پاتې دي

په ګل وطن راغلي د کړکېچن وختونو او یادونو په باب وایي:

یو ښکلې باب شي د تاریخ ترې جوړېدلای اشنا
دومره قیصې د رنګو پنګو هدیرو پاتې دي

د خانانو زامنو ته مخاطب شوای چې تاسو پښتونولي ته کومه تیره و وهله - وایي :

ما ته پهٔ کومه خلهٔ پېغور د بې ننګۍ را کوې
د خان زامنه تا کښې هم څه د پښتو پاتې دي

بل ځای ورته وایي:

ستا د کوټ او پتلون قدر د خان زویه دلته نشته
چې جامه یې د پښتون وي که شپانهٔ دي قدرمن دي

د پښتونخوا د غرونو لوټمارانو/ شوکمارانو څخه مو خبروي - وایي

خزانې د پښتونخوا د غرونو یوسي
د دې دنګو دنګو غرونو غلهٔ هم شته دي

کله کله د رومانیت نرای رنګ پرې غالب شوای چې ببخي په پړدو کښې خوندي دای لکه وایي:

روغ سړای یمه په څه نهٔ یم دلبره
خو پهٔ زړهٔ د ننه ښه نهٔ یم دلبره

چې مهجور دې لټوي تهٔ نهٔ مونده ېږې
چې مې غواړې بیا به زهٔ نهٔ یم دلبره

د رقیب تنګ نظري یې په ګوته کړې وایي:

رقيب ژاړي چې مهجور او جانان يو ځاى
دۀ په ستر ګو دي ليدلي سره ګرځي

بل ځاى د محبوب بې نيازي او سر زوري ته اشاره کوي :

ما چې زلفې يادې کړې سپين مخي راته وويل
بيا ګوره په سپينه ورځ د شپې خبره و نۀ کړې

د وخت د مذهبي خلکو نه هم پوښتنه کوي ورته وايي:

وژل چې د مېرې ملا صاحبه ګناه بولې
روا شو قتلول ستا په تقرير د هغو خلکو

د وخت تېري زياتي ته مخاطب داى وايي:

د ګلونو لو مې ګډ شو ځکه ژاړم
خپل پردي چې دا په ما کوي دا څۀ دي؟

له غاصبانو پوښتنه کوي -او وايي :

غريب بنيان کښې هم خولې داى تۀ خپل کوټ وګوره
دا په ګرمۍ کښې په غريب پورې خندا نۀ ده څۀ ؟

ستاد پنځو ستورو هوټل کښې شته شراب او کباب
وچه ډوډۍ ما له تنبو کښې هم روا نه ده څه ؟

د پښتنې خورکۍ پۀ بې سترۍ او بې مهاره آزادۍ باندې ژړا کوي او داسې منت زارۍ کوي-

خورې پښتنې بې ستره مه ګرځه پېدا کړه
کومه غېرتي جذبه چې وه ملاله ترور کښې

بل ځاى بيا و پښتنو پېغلو ته مخاطب شواى:

څه خو ګرم يو خپل څه د حالاتو پۀ قصور کښې
ورو شوه حيا ختمه د پښتون په لور او خور کښې

د وزیرستان تاریخي حماسي وختونو ته یې هم اشاره کړې او خپل اتلان یې نازولي دي- وایي:

خونــد ؤ د غـــزا د تېـــرو تـــورو پــــۀ پړکـــار کښـــې
پـروت چې شـهیدان وو سـرې سیورې د پرېغـل کښـې

د وزیرستان پۀ ورانولو بې کچې خفه دای او غالباً د هر غزل په یو نیم بیت کښې یې ذکر کړای دای - وایي:

چې کـوم کـوډګر پـۀ ګران وزیرسـتان وکړلـې کـوډې
کـوم ځـای چې بـه ګلونـه ټوکېـدل هلتـه مورچـه ده

د وطن پۀ تنکو ګلالو پسې ژړا کوي او ظالم ته منت کوي چې دا د تنکو ګلونو لو پرېږدي -وایي:

زړۀ دې کـاڼی دای ظالمـه څه بې وختـه دې تیـار کـړو
دا تنکـیٰ ځـواني یـې ګـوره دا زلمـی د مرګـي نـۀ دای

د پښتون په وېش یې زړۀ آرې دای- وېش کوونکي ته داسې وایي:

د پښـتون پـۀ لـر او بـر کښـې چې وېش پـوخ شـي
شـــابه زور ورکـــړه تورمخیـــه خپـــل دېـــوال تـــه

د پښتو ژبې په ناقدرۍ د باباګانو ژړا خوبونو کښې ویني- وایي:

مـا خـوب لیـدو چې څـوک پښـتو د دوزخ ژبـه بـولي
پـــۀ دا خبـــره سمدســـتي روح د حمـــزه و ژړل

د پښـتونخوا پـه بدحالۍ لـه واکدارانو پوښـتنې کوي او پېغـور ورکوي- وایي:

د کشـمیر ظلـم دې لمحـه لمحـه پـۀ خلـۀ دای جـاري
پـه پښـتونخوا چې کـوي ظلم بې زبـان یـې کـه نـه؟

او بل ځای بیا د پښتونخوا و بدبختۍ ته اشاره کوي او وایي چې:

چا کړې د دین په نامه بڼه چا د دنیا په هیله
چا نه دي و ژغورو د ګرانې پښتونخوا ګرېوانه
د کلي وطن و لباسي غمخور خلکو ته داسې ګویان دای چې:
غم د خپټې دای د قام په نوم اخستی
د وطن هر یو واکدار ته فکر وکړه

د وطن غنم پلوري جېبونه ډک کړي
ووږ دي ورکړو اوس دا پلار ته فکر وکړه
د علیقدر په غزلو کښې پند او نصیحت هم شته د ے- هغه د شعر
د لارې د وعظ کار هم تر سره کړای - وایي:
احترام د هر سړي کوه مهجوره
خو د هر سړي نه پلار مه جوړوه
بل ځای د راز خوندي نهٔ ساتلو په باب وایي:
د راز ورغومي به دې شي ټول د لېوانو خوراک
د زړهٔ له شپول دې د رازونو که رمې و ایستې
بل ځای د دنیا بې ثباتي ته اشاره کوي او لاروي ته وایي -
رنګ ثلي چې ګورې نو بیا دومره فکر هم کوه
دا هم د چا ښکلي وجودونه وو چې خاورې شؤل
د وخت پاخه متلونه یې هم د شعر په جامه ښکلي کړي دي یو
ځای کښې لیکي:
چې ژنهای مشر شي د کلي تباهي له بس دای
ژنهي د کلي شؤل مشران اورونه ولګېدل
د نننې دور خودغرضۍ او ځانځانۍ ته یې ډېر عجیبه توري
موندلي دي ته به وایې په آب زر نویسته دي- وایي:

تقـــدس د هـــر تـــړون دومـــره خیـــرن شـــو
چـــا تـــه "خپـــل" وئـــیلے نـــۀ شـــمه شـــرمېږم

د پشتون روایاتو او اقدارو بې قدري په کلکه غندي -یو شعر کښې وایي:

پښـــــتنې شـــــملې مـــــې داســـــې راتـــــه اووې
"مـــه مـــې ږده پـــه داســـې ســـر چـــې ټيټـــوي مـــې"

علیقدر مهجور صیب په خپلو غزلو او نظمونو کښې د خپل وطن ذکر فکر د شعر لازمه برخه ګڼي وایي:

چې ویـر د وران وزیرسـتان مـې پـۀ غـزل کښـې نـۀ وي
لکـــه چـــې ذکـــر د جانـــان مـــې پـــۀ غـــزل نـــۀ وي

بل ځای بیا په لوستونکي ټینګارکوي چې زما لیک و نورو ته هم ورسوه- وایي:

خپـــل یـــې و لـــولئ او بـــل تـــه یـــې هـــم ورســـوئ
قیصـه د قـام چـې د نقصـان مـې پـۀ غـزل کښـې نـه وي

او بیا همدغه غزل کښې د ګرد افغانیت په باب لیکي او ذکر یې پر ځان فرض ګڼي-

ردي ټـــوکرۍ تـــه یـــې ور واچـــوئ او مـــه یـــې لـــولئ
چې درد او غـم د خپـل افغـان مـې پـۀ غـزل کښـې نـۀ وي

د نـام نهـاد خونـدي چالبـاز غمخورګربوان تـه لاس اچـوي د ګـردې بدبختۍ سرغنه یې نوموي او ورته وایي:

لاړل ســـــتا بچـــــي ســـــبلونو د لنـــــدن تـــــه
شـــاګردان دې پـــه ســـرو وینـــو لامبـــل غـــواړي

د خپل کلي وطن نه د مهـاجرت پـه بـاب ببخي زیـات خفـه دای او ځان ته پېغورجنې وایي:

د خپـل "بـوړي" ټوپـک پـه خـوا کښـې مـړۀ وای
خـــو مـــونږ لـــه توپـــو تښـــتېدلي نـــه وای

زړې جـــــــــامې او دا زړه لوپټـــــــــه
خـــوريې خـــورزۀ خـــور مـــې ليـــدلي نـــۀ وای

و خپل قام ته مشورې ورکوي چې له بدبختيو رابهر شي لاره ورته ښايي او ورته وايي:

يـا خـو د وخـت د سـامري د غـوا بچـای مـه پرېـږده
او يـا ګيلـه پـۀ خپلـو څڼـو هـاروني مـه کـوه

په وزيرستانۍ لهجه کښې يې طبع ازمايي کړې او ښۀ خوندور نظم غزل يې ليکلي دي:

د وزيرستانۍ لهجې دې يوه غزل مقطع کښې وايي:

ميـدون دې مينـې کشـې بـې خوفـه بـې خطـره ګرځـي
مهجـوره تـل کـوي بـې تيـرې ننګيـولي مشـقينه

مهجور صېب په پښتو ميئن شاعر دای هغه د پښتو په باب کار کول غواړي او ملګري غواړي:

يـو جماعـت راتـه پکـار دای د پښـتو د تبليـغ
يـو څـو کسـانو ارادې د سـه روزې کـړې دي

بل ځای بیا وایي:

زيـاتوب د علـم غـواړي نـورې ژبـې زده کـول هـم
ليکـو، لولـو او وايـو پـۀ پښـتو کارونـه کيـږي

پښتون د ځان احتساب ته مراجعه کوي چې خپل ګوګل کښې سر د ننه کړي- وايي:

پښتون دې خپل کتاب د عمل و لولي څه وايي
فرقې فرقې پښتون دای عذابونه دي وريږي

د وزيرستان د راتلونکي په حواله خوشبين نهٔ دای بلکې خدای مه کا څه بل رنګ پېشنګويي کوي:

پهٔ ګران وزيرستان کښې لا پاسته نوي ازغي دي
مهجوره خلک وايي سرهٔ ګلونه دي وريږي

کله کله شاعر د ځان سره پهٔ ترمو ترمو ژاړي ځکه چې د حالاتو نزاکت ويني د قام بربادۍ ويني د راتلونکي په باب يې علامې ځوروي دا ځکه چې شاعر سترګور وي-هغه ، هغه څه ويني چې ډېر کم يې بل څوک ويني-مهجور صېب داسې په زړه بار درانه ساعتونه داسې بيانوي- وايي:

چې زړهٔ له غمه شين شي نو له سترګو اوښکې څاڅي
په شين آسمان چې وربځ نه شي باران کله وريږي

او بل ځای د خپل ترلي کور دروازه ويني چې يوچا ماته کړه او په خندا خالي انګڼ ته ګډ سو:

چې په يو ګوزار د بوټ يې ور زما د کوټې مات کړو
سپاهي وخندل چې ياره دروازه خو داسې نهٔ وي

د مهجور صېب غزلې د پند او خوند نه ډک دي مګر د نظم انداز يې ډېر جارحانه او زوراور دای- د هغه يو يو نظم د ګرد کتاب مخای دای ځکه چې دومره په لوی پېغام ترينګلي دي -که د ليک د اوږدوالي نه نهٔ وېرېدلای ما به له هر نظم نمونه درته وړاندې کړې وای خو يرېږم لوستونکي به وو ايي چې بيا د کتاب و لوستلو ته کوم حاجت پاتې شو-

په لنډ ټکو کښې د عنوان / سرخط لاندې د هر يو نظم په حواله يو دوه تمهيدي ټکي ليکم نور يې تاسو پخپله ولولئ -

نظم "تېره ورځ" کښې مهجور صېب د تېرې ورځې نه روړداد پوښتي او اخر کښې د پښتون او د غلام خلکو د راتلونکي لپاره ارادې او ولولې پوښتنه کوي -

دا رنګ د مهجور صېب یو بل نظم "پوښتنې" کښې هم د مزدور او مقهور خلکو د سپېرۀ نصیب په باب پوښتنې شوې دي چې کله به له بدبختیو برات ومومي -

"اوس مه راځه لالیه" سرخط لاندې نظم کښې هم د پښتون بې وزله ژوند ته اشاره ده چې یو پښتون خپل محبوب ته ټینګار کوي چې زۀ خو هسې هم د حالاتو ښکار یم تۀ مه راځه تۀ راسره ځان په بدبختیو کښې مه شریکوه-

د مهجور صېب یو اوږد او شاهکار نظم " د پرېغل پۀ تناظر کښې جنوبي وزیرستان ته"هم پۀ لولو ارزي -

"اې مسکنه د غازیانو اې مورچې د باتورانو" کښې وزیرستان ته مخاطب شوای دای - تاریخي حوالې دي پکښې او د پرېغل د جګوالي په تناظر کښې د قام د ارادو جګوالای غواړي - او له پردو یې آزادي مطلوب ده-

دا رنګ یو بل تود خوندور نظم

" جنوبي وزیرستان ته دعا او خواستونه " چې پخوانی نظم دای چې هغه وخت وزیرستان د بدبختیو تورې سیلۍ نه و ځبولای- دغه نظم کښې مهجور صېب و خپلو خلکو ته خواستونه کړي دي د جوړښت او یووالي خبره یې کړې ده- بلا مبالغه یو اعلا نظم دای -

"د آزادۍ په ورځ " سرخط لاندې نظم کښې د یوې بورې مور روداد بیانوي چې د آزادۍ په ورځ په خپل شهید زوی پسې ژړا کوي- داسې تورې یې کارولي چې د کاڼي زړه هم نرموَلای شي-

یو بل تود نظم چې بیخي یې هر ټکای نارې وهي" بلنه" دای - دغه نظم کښې علیقدر مزدور او محنت کش خلکو ته بلنه ورکوي- او بیا غټانو غاصبانو ته غږ کوي خپل حساب کتاب راوړئ-

اې خوارانو غریبانو راشئ راشئ - هغه بلنه ده چې د ډېرو خوبونه تښتوي-

د "راشه " سرخط لاندې لیکلای نظم یې بلا ارزوګانې لري- هر بند یې جدا جدا غوشتنه کوي- ډېر تود او خوندور نظم دای-

مهجور صېب تل د خوارانو ملنګانو او بې کسو خلکو طرفدار پاتې شوای دای شعر کښې د دغو طبقو ذکر د ده د کلام خاصه ده-

د "راپک"سرخط لاندې نظم کښې علیقدر د یوګړدبون روداد بیانوي چې له خلکو خېرات غواړي- دا کردار رښتونی دای او دا ملنګ زموږ ډېرو خلکو پېژندلو- علیقدر وایي چې راپک که جېب کښې کلدارې لرلئ راپک نه خلکو به ورته راپاخان وېیل- ډېر ترخه احساسات دي دغه ذکر شوي نظم کښې-

د علیقدر یو بل نظم دای چې عنوان یې دای - "زخمي ګوته " -دغه نظم کښې مهجور صېب د یو غریب اشپز / پاختني روداد بیان کړای چې ګوته یې غوڅه شوې وه او په تنور یې د غوڅې ګوتې سره روټۍ پخولې- ترخه او زړه سواند احساسات یې راجمع کړي دي-

"څوک دے؟ " سرخط لاندې نظم یې ډېر مشهور نظم دای چې په کال 1970 کښې "روزنامه شهباز " کښې هم خپور شوای ؤ -

یو بل خوندور نظم " د کاروان منځې په سر" کښې د یو مزدور په ژوند او کړاوونو خبره کوي دا هغه زمانه ده چې د کوټکي او کانیګرم سړک نوای نوای جوړ شوای ؤ خلک د سړک په جوړښت خوشحاله وو او مهجور

صېب ته هغه مزدور سترګو کښې وړاندې وړاندې کېده چې دغه تور سړک يې د تارکول په تودو فوارو کښې ورته جوړ کړاى-

د خپل کلي يو لېوني په مرګ يې نظم لیکلاى داى "د لېوني پۀ مرګ"- دا دومره تريخ او خوږمن نظم داى چې زړه سواند خلک د اوښکو په نذرانه او فاتحه مجبوروي- دا د هغو زمانو يادونه دي چې عليقدر وانه کښې د ډسپنسر ټرېننګ کوي او کلي ته په رخصتي راغلاى-

"د خان جېل" د طنز يوه نمونه نظم داى چې مهجور صېب ځان ته همدغسې جېل خوښ کړاى-

يو بل نظم "غمژن اختر" کښې عليقدر د غمجنو کورنيو په باب ليکنې کړې دي دا هغه زمانه ده چې د پاکستان نوي زره پوځيان انډيا زنداني کړي وو- د زندانيانو د ژوند مرګ په حواله د دوى کورنۍ غمجنې وې او غېر يقينې صورت حال جوړ ؤ-د دغې وختونو اختر دوي ځنګه لمانځلاى نظم کښې ثبت شواى داى-

"يو شاعر ملګري ته وصيت " کښې عليقدر د خپلې شاعرۍ خوندي او ژوندۍ ساتلو په باب يو شاګرد ته ليک کړاى - چې زما په حال ځان خبر ساته او شايد هغه ملګراى يا شاګرد يې اخته داى او دغه کتاب يې د عملي کړنو ژونداى ثبوت داى ي- ان شاءالله

يو بل سپېکي سپېکي نظم. "بغاوت "چې دغه مهجور صېب هغه زمانه کښې ليکلاى چې ذوالفقار علي بهټو د پښتونخوا او بلوچستان حکومتونه مات کړي وو-

"د پرېغل د ځوکې بازه " سرخط لاندې ليکلاى نظم اوږد داى او ډېر عجيبه انداز کښې يې د وزيرستان خلک مخاطب کړاى - د يو دومره خوندور او سبق اموز نظم داى چې قاري تر پايه پورې سترګې نۀ شي ترېنه اړولاى واقعي د صفت وړ نظم داى-

ما اول هم ذکر کړای چې عليقدر غريب يار دای مظلوميار دای ځکـه يـې د ليـک زيـاتره برخـه د غريـب او بـې وزلـه خلکـو متعلـق ده او د غاصبانو پر ضد قوي ضرب دای -

"دهقان ته " نظم کښې هم مهجور صبب د يو کروندګر پـه خولـې خولې ژوند خبره کړې او د دۀ له خولو مستفيد غاصب يې غندلای -

د مهجور صبب اخيرنے خو پـۀ اصـل کښـې اولنے اوږد او ژونـدای نظم "پښتون ته " تر عنوان لاندې ليکلای شوای دای دغه نظم کښـې عليقـدر پښتنو زلمو ته تېرې هېرې خاطرې ور يـادې کړې دي او لکـه آيينـه يـې ورتـه مخامخ کړې چې پښتون پکښې خپل ځان و وينې-

دا ډېر ګټور او خوندور ليک دای بايد هر پښتون تـه و رسـي او د زړه پۀ سترګو يې ولولي- مبالغـه نـه ده- د خونـد او حېرانتيـا خبـره خـو دا ده چې دغه نظم عليقدر کال ۱۹۶۶م کښې ليکلی چې د ے د اتم ټولګي طالبعلم ؤ-

د "سـکروټې پـه ايـرو کښــې" اخـري بـاب پـه قطعـاتو او هـايکو پېرلای چې لکه د منګيز په لمن په زرزري تيلو ګلدوزي وشي-

قطعات يې هـم بې پـنده يـا بېخونـده نـۀ دي لنډي ببتونـه دي چې اوږده تمهيدونه لري-

-عليقدر په يوه قطعه کښې د خپلې زړبوډۍ وير په داسې ټکو کښې کړای

پــوی د ژونــد پــۀ نــه بيګــا نــۀ پــۀ سـبا شــؤم
ان تــر دې چــې کــم و بــېش زۀ د اويــا شــؤم

د ځــوانۍ ارمــان ســلګۍ وهــي پــۀ زړۀ کښــې
د ځــوانۍ ارمــان کؤمــه چــې بــوډا شــؤم

بل ځای کښې ډېر حکيمانه انداز کښې سياستمدارانو ته وايي-

مــــورِ تـــه لالـــچ د دولـــت مـــه راکـــوئ
زمــــــورِ دا خپلـــــه غریبــــي ښــــه ده

نــور مــو لــه کــاره پــۀ جلســو مــه باســئ
زمــــونږ دا خپلـــــه مــــزدوري ښـــه ده

علیقدر ډېر تېز او تُند طنز کوي چې مدمقابل یې ځواب نۀ مومي-
د وزیرستان د کړکېچنو حالاتو په وخت په کډه کښې یو کلیوال سره خبره سپینوي-

یــو تربــور مــې پــۀ" تورمانــدي " کښــې خبــره وکــړه
کور کښې دې مړۀ وای خو چې دومره لرې تللي نۀ وای
مــا ورتــه اووې چــې لا اوس هــم ډېــر راغلــي نــۀ یــو
وې یې چې کور د مرګي رنګ کړې چې ښاغلي نۀ وای

بل ځای بیا پېغورجنه کښې وایي-

چــې پښــتو د کلیوالــو پــۀ شــان نــۀ کــړې
بیــا پښــتون چــې ځــان تــه و نــۀ وایــې ګــوره

د" ترلـــې" مـــې د کمځـــو ســـره ســـم نـــۀ دي
ســـتا دا ښـــکته للېـــدلي بربېـــت تربـــوره

کله کله د زلمیتوب تبجنې ولولې په قطعه کښې للو کوي- وایي:

پـــلار تـــه دې وایـــه چـــې انکـــار و نـــۀ کـــړي
پښـــتون زلمـــے یمــــه زۀ مــــړي کـــؤم

خـــو زۀ هغـــه پښـــتون هـــم نـــۀ یمـــه چـــې؛
پـــۀ ســـرو منګؤلـــو پـــۀ تـــا پـــړي کـــؤم

کله کله قطعاتو کښې شوخي خوندي کړې لکه یو ځای وایي -

مـــا ورتـــه وې چـــې ښـــهٔ د کـــار خلـــک دي
د ښـــهٔ کـــردار، د ښـــه ګفتـــار خلـــک دي
جانـــان مـــې رو غونـــدې پـــهٔ غـــوږ کښـــې ووې
"دا شـــاعران هـــم ښـــهٔ وزګـــار خلـــک دي"

قطعات دې دومره بس وي ځکه چې ما پېل کښې د مشت نمونه خروار وعده کړې وه -

هایکو یو ښځي نوای انداز دای د منظوم لیکنو - پوهان وایي د جاپان تخلیق دای-

علیقدر مهجور صېب په دغي نوي انداز کښې هم د خپل قلم زور ازمېیلای دای او پکښې برلاسے شوے دے-

د نمونې په حېث یوه هایکو راوړم نورې ستاسو په حواله کؤم-

کوشـلیي ځـووني زیبـږه پګـړۍ دې پـهٔ سـر
داســـې کشـــیژي لکـــه ولبـــژدې چـــې
پـهٔ دواکـي جېنـګ دې منـي زیبـږې ګېـډۍ

په پای کښې به دومره ووایم چې د روغ بادشاه خیال صېب د نظم یو بېت دای " کاش چې ویجاړه پښتونخوا کښې مې زېږون نهٔ وای "کاش چې پښتون نهٔ وای"

زهٔ وایم کاش چې د مهجور صېب په وزیرستان کښې او بیا پـهٔ منځني وزیرستان کښې زېږون نـهٔ وای ځکه چې- دا د ادب پـه حوالـه هغـه سپېره شاړه خاوره ده چې د بلا ناوړه، بېخونده، بې رنګه دودونو پهٔ والکه کښې ده دا هغه ترخه خاوره ده چې شاعر ادیب پکښې د ما في الضمیر اظهار نهٔ شي کولای دا هغه منطقه ده چې شعروشاعري یا ادبي هلو ځلو ته د ډمتوب نوم ورکوي زموږ دغو بېخونده تربتو رسمونو رواجونو زموږ د مهجور صېب غوندې ډېرې قیمتي ملغلرې ضایعه کړې - د احساساتو

مرګونه پکښې کیږي او ډېر لیکوالان لا نن هم په خپل لیک/ تخلیق پورې داسې پۀ وېره ترهه ګرځي ته به ګمان کوې کوم لوی مجرم دای یا یې غلا کړې ده-

خدای متعال ج دې وکړي نور زموږ تکړه د تخلیق خاوندان راځخه ضایعه نۀ شي د شاعرانو/ لیکوالانو ضیاع د یو قام د شعوري اثاثې ضیاع ده دا هغه سترګور او ځیرک خلک دي ، چې د زمان او مکان معمولي خوځښت هم ډېر پۀ شدت محسوسوي او قام ته اګاهو پېغام او خبرتیا ورکوي دا بېله خبرې ده چې اوریدونکي- لوستونکي لا ورته بابولالې ووايي لا د خیالي دنیا خبرې-

په هر صورت موږ له راتلونکي کهول څخه هیله لرو چې دوی په دغه حواله پامته دار و اوسي او دومره ځنډ نۀ کړي چې د لعلونو خزانو ته توري پنجې و رسي-

د ادب یۀ ادنا زده کوونکي پۀ حېث خو زما وړاندیز دا دای چې پۀ مرګ د یو بل کالیزې یا تلین لمانځلو نه به دا خبره سل واري غوره او بهتره وي چې پۀ ژوند یو بل سره و پېژنو- یو بل سره و نازؤو او یو بل ته مینه او احترام سره ورکړو- ځکه چې:

دا جهــــــان دخپلـــــــوی کـــــــور دای
ځانځـــــانی لـــــــره خـــــو ګـــــــور دای

په سوچه او توده پښتونوا له مینه
سره د ټولو ادابو او احتراماتو
مظلومیار ماسید
ډېره اسماعیل خان/ پښتونخوا
28م جولایي ۲۰۲۱م
د هاړ ۱۵مه

# مهجور صاحب چې زۀ څومره پېژانۀ

بسم الله الرحمن الرحيم

دا دې 89-1988 خبره دو چې کله دې مو په پي - ټي - سي پوسټ ارډر وشۀ- هغه هن دې مهجور صاحب و کلي ته نژدې هايي سکول شنکئ بندې- دغه وخت دې شنکئ هايي سکول هېډماسټر دې مو ساکه نیبیۀ/ماما قدرمن او ګرون محمد دين صاحب وۀ چې په قوم نظر خېل دای - زه نوای نوای وۀ او دا علاقه شې هن بالات نۀ وۀ - ايستوذون بندې مې نظر اچووۀ- چې پۀ محترم مهجور صاحب مې سترګې ولاګېدې يو غايبونۀ خوشبويي او پيژندګلي احساس روته کېدۀ ماما مې تعارف ورته کووۀ چې دا نورعالم دای دا هن يو شۀ شاعر دای- هغه ريځې نه ووم پيژندګلي سره وشوه او بيا دې سفر او پرادي کلي وطن واختيري مې په دۀ پورې په خوند بداله شوه ځکه چې داسې ملګرای مې ميندلي چې زه دې دۀ او دای دې مو په ژاغېدو سره پېدلي - د شعر و شاعرۍ خووژۀ تروۀ ووم سره وبشل- دۀ مو ته اول وور دې "راپک" خدای بخشلي بندې ليکلای نظم تېر که چې په دغه کيتوبۀ شې هن شته دای- ډېر زيوت ځينې متاثر شوۀ او ډېر زيوت خوند يې روکۀ -

کـه دي مهجـور صـاحب پـه شخصیت بنـدي لیکـل کـاوۀ- اول خو داسي مناسب ټکي نه میندا وۀ او بیا که میندل هن شي پته نشته دای -دای ووی قبیل کوو که نۀ-

د مهجور صاحب شخصیت رڼا ربځ دو کیمه سیوره - تیاره یي په شخصیت نشته ،سپین ، صادق، همدرد ، زړسو بیان ، دي خور غریب یور ملګرای ؤ دي خپل پردی غمخورای، دي خپلي زمه وورۍ پابند ، پرهېزګار ، او سخي سړای وۀ، تل انصاف خواشَوینکای وۀ- مو په سکول شي دای یادګېرنه کړای وۀ چي سنیئر/جونئیر ایستوذوني وي ډېر قدر کووۀ- تعلیمي تکړاوولای خدای ډېر ویر وۀ په سکول شي وو چي چا ته هن د سبق په حواله څه مشکل پېش شۀ مهجور صاحب ته ووی وشولي- دي سکول بچیون بندي یي ډېر قدر وۀ او خدای داسي رعب ویر کړای وۀ چي دي سکول په ګېټ وو رو نناوتلي یوه خاموشي وو جوړه شوه یوۀ بل وو سره وبل خلیل صېب روغای ،سنبال شئ- دا رعب او درانشت وو ویلي نۀ وي چي دا پوس ټولي خوبۍ خدای ویر نصیب کړیي وي -

ډېر محنتي او مخلص ایستوذ وۀ دۀ کله هن په سکول شي د خپل پردي پیرډ ایسوب نۀ دای کړای چي کلاس شي وو ایستوذ نه وۀ په خپل مخ وو ویر نناوتلي او سبق وي بچیون ته ویلي-

مهجور صاحب د هر مظلوم طرفدار شخصیت لري-

دي سـکول نـه عـلاوه دي دۀ پرایوېـټ کلېنـک هـن وۀ چـي موسپېشین نه بعد وو یي خلوصاولي- خو دای مو چېري نه دای لیدلای چي سکول ټایم شي کلېنک ته تللای وي حالانکي دي سکول ټایم شي وو هن بیمورون دي سکول په چاردېواري رو بدال وي انتظار ووی کووۀ خو دۀ کله هن پېرډ نه پرېیاش- البته که چېري وي داس موقع میندله چي فارغ وو وۀ ایستوذون وو موجود وي بیا وو کله کله بیمورون ته پۀ ګېټ وېر و ووت -

ډېر دې لرې لرې نۀ وو خلک ورته روتۀ خدای یې لوس شې شفاء اچولیې وه- دې میډیکل پرېکټس نه علاوه دای یو ډېر مشهور حکیم هن دای چې دې حکمت دې شهرت نه یې ډېر لرې لرې خلق خبر دای-

جامې ډېرې دې چې قلم یې بیان پسې نۀ رسي ، ژبه / نوکه یې وچیږي-

دې مهجور صاحب کورنۍ یوه لویه دیني کورنۍ دو- دې دۀ نیکه خدای بخشلای یو بزرګ وۀ دې خپل وخت ځکه په ټوله علاقه شې خلک دۀ ته او دې دۀ کورنۍ ته دې قدر په نظر کسي-

دیاته وو دې یوې خبرې وضاحت وکۀ چې دې دۀ شاعري تر وېسه پورې خوندي سوتلې وجه دا دو چې دای دې یوې دیني کورنۍ سره تعلق لري او دې میږ خلک په پټې سترګې شاعري په بده مني- حالانکې دې مهجور صاحب شاعري شې خو دې ګل او دې بلبل قیصه هن ډېره کمه دو لیا دې نشت باروباره دو - هغه یو قومي ملي پاشتین او مذهبي شاعر دای- خو بیا هن دې شاعرۍ بدنومي ټکي دای دامره و ځانډووۀ چې نن پنځه پنځوس کوله نه بعد دې دۀ کیتوب چاپ کیږي- خو بیا هن شه دو چې کیمه شاعري یې پوتې دو هغه محفوظ شي او د ژوند په زرېبډي شې یې ارموند پیره شي - البته داغه ظلم نور مناسب نۀ دای-

دې مهجور صاحب شاعري هن داسې خوندور خوانای دای چې هر قسم شیریني پکشې شته دای- لیک یې ډېر پوخ او مطلبي دای- دې قافیه ردیف شاعر نۀ دای بلکې هر شعر هر غزل هر نظم یې د مقصد نه ډک دای - لهجه یې بیخي ساده دو خو شعر یې ډېر زورآور دای-

په پیره غزل شې یې یو هن داسې شعر نۀ میندیږي چې په قافیه ردیف یې ځون خلوص کړای وي- او دې شعر دې مطلب خیال یې نۀ وي سوتلای-

دې زړې زمونې شاعر دای- په هغه زمونه شې چې خدای بخښلي حمزه بابا او نورې درانې تکړه شاعرونې وو ادبي غونډې جوړولې دۀ هن په شې شرکت کولي- او دې غزل ستر بابا حمزه علیه رحمه هن شاباسي ویر کړي دي دغې نه دا پته لګي چې دې وزیرستان په ادبي دنیو شې چې لیا تیاره وه هغه تیارې شې مهجور صاحب یو جاوات ستورای دای-

دې دۀ دې شاعرۍ دې معیار اندازه دغې نه هن لاګیدله شي چې دې حمزه بابا په دور شې دې دۀ کلامینه په روزنامه شهباز پېښور او نورې مشهورې رسالې شې روتلل-

خو افسوس دا دای چې دې میژ وطن شې او بیا په ټول پاشتونۀ شې دا بدبختي شته دای چې شاعر سره یې بدي دو- زۀ یایۀ که مهجور صاحب غوندې شاعر په بل قوم شې وای نن وې دې ادب پۀ تاریخ شې یو باب وای او یو نوم وې وای- خو وزیرستان دای او پشتونستان دای چې ژوندي یې بې قدره دي خو مړي یې قدرمن دي-

میژ ژوندي نۀ سره پرېژدي خو پۀ مړینیې شۀ پاله نازیژي- دا دې قدر او میني یو بې مطلبه انداز دای-

مهجور صاحب نن سابو لژ بیمور دای خدای دا وکوو دا کیتوب یې دې خواشولۍ او صحت سبب وګرځي- آمین

په غونډه مینه
نورعالم ماسید
دېره، پښتونخوا
یکم جولایي 2021م

# محمد خلیل مهجور صېب غائبانه پېژنم

ادب یوه داسې دنیا ده چې څوک ور داخل شي نو تاریخ یې ملګرے شي تل یې یاد ساتي- داسې خلق دمرګ نه وروستو هم لکه ژوندي یادیږي-

ډېر محترم مهجور صېب پۀ وزیرستان کښې یو ځلانده ستورے دے- هسې هم دغه خاوره ډېره ځربه ده د ادب په حواله ، لېکن متاسفانه مونږ څخه خپل تاریخ خوندي ساتلے شوے دے، لکه پیر روشان چې لوی لیکوونکے،ستر مبارز او لوی قهرمان تېر شوای دای، هم د دغې خاورے نه ؤ- د ټول پښتون اولس پۀ سر یې ننګ کړے دے- تر دې حده چې خپل زامن او خپلوان یې قربان کړل ، خو د مغلو پۀ خلاف یې د پښتون قام د ساتنې هڅه جاري وساتله -

دغه شان ملا پېونده هم د دې خاورې ځوان ؤ چې د انګرېز پۀ شان دښمن یې هم مېړانه منلې ده-

محترم مهجور صېب هم د دغه زنځیر یوه کړۍ ده- مهجور صېب زۀ غائبانه پېژنم- د هغه شاګردانو او نورو نژدې ملګرو څخه مې د هغه د شخصیت پۀ حقله ډېر څۀ اورېدلي دي، لکه محترم مظلومیار صېب، نورعالم مسید صېب او داسې نور-

وایي مهجور صېب د یوې دیني کورنۍ سره تعلق لري- دغه لامل ؤ چې دۀ تر اوسه پورې خپل کلام چاپ نۀ کړې شو، چې هسې نه څوک زما کورنۍ ته بد و وایي . ولې چې شاعر ته زمونږ په ټولنه کښې چا پۀ درانه سترګه نۀ کتل ، اوس لږ شعور پېدا شوے دے- نو ځکه دا غنیمت دے چې اوس پۀ دغه وخت مونږ ته دمهجور صېب لیکلے کلام پۀ لاس راشي نو دا تاریخ یوه برخه به جوړه شي او دغه نوي نسل لپاره به یو لوی سبق و ګرځي-

تر څو چې ما ته معلومه ده چې مهجور صېب يو د لوړې پايې معلم يا ښوونکے پاتې شوے دے . نن يې هم شاګردان قدر کوي- د خپلې ډيوټۍ ډېر پابند معلم ؤ- او ورسره يو لوی طبيب هم ؤ، چې پۀ وزګار وخت کښې به يې خلقو ته د تداوۍ دارو هم ورکؤل -

مهجور صېب کال ۱۹۶۵م څخه د شعر وشاعرۍ سره تعلق ژوندے ساتلے دے- د هغه وخت په رسالو کښې به يې کلام چاپ کېدو- د لويو لويو شاعرانو سره يې ليدۀ کاتۀ شوي دي لکه اروابښاد اميرحمزه شنواري به دې هغۀ ليک ته ډېر پۀ درانۀ سترګه کتل-

مهجورصېب نظم ، غزل او هائيکو ډېر پۀ ښۀ انداز سره تړلي دي -

مهجور صېب پۀ قام مئين سړے دے لکه وايي-

زړۀ خو مې غواړي چې دې و ستايمه
خو دا لفظونه به له کومه غواړم
پښتونه ځوانه که دې پلار غوندې شوې
نو ستا پۀ پلار پسې به و نۀ ژاړم

مهجور صېب زاړۀ وختونه ليدلی دي نو ځکه پۀ شعرکښې داسې وايي:

کله کله يادېږي تېر وختونه
ښۀ وختونه خو افسوس پۀ شمېر وختونه

مهجور صېب دغريب اولس پۀ حال ژړا کړې ده لکه وايي:

چې کور کښې ډېوې مړې وي پتنګان کله راځي
غربت چې ترحد زيات شي نو ياران کله راځي

مهجور صېب د خپل وطن وران ويجاړحال داسې بيانوي:

مهجوره دا پۀ وهم او ګمان کښې د چا نۀ وه
چې خړ وخت به پۀ ګل وزيرستان کله راځي

مهجور صېب پۀ خپل شعر کښې خپلې بيمارۍ او د عمر ذکر داسې کوي-

کـه بیمـار یـم لـږ مـې خیـال پـهٔ مـاه و صـال کـه
د اویـا کـالونو تېـر شـؤمه تـهٔ خیـال کـه

مهجورصېب د غزل او نظم سره هائیکو هم ډېر پهٔ ښهٔ انداز لیکي لکه د حالاتو پهٔ تناظر کښې وایي:

دا بېـر سـر څېـرې ګرېـوان ولـې ؟
مـا وې چـې دا لېـونے سـتا مینـې کـړم
اشـنا مـې وېـل چـې دهشـت ګـر لیـدهٔ شـې

مهجور صېب په خپله شاعري کښې د قام سره مینه، د وطن سره مینه ښکاره کړې ده ، پهٔ غریب باندې ترسېدلے دے ، د ظالم نه یې ډېره ګیله کړې ده- زهٔ دمهجور پهٔ لیک ویاړم چې وزیرستان کښې هم د نورې پښتنې سیمې پهٔ شان داسې خلق شته چې مونږ ورباندې ویاړ کولے شو-

یو اخري شعر چې دهٔ پکښې د راتلونکي وخت وېنا کړې ده:

لـر پښـتون کـه سترګې پټې کړي چې خبر دے زهٔ خو بـچ یـم
د بمونـو دغـه بـوی بـه را رسـېږي پېښـور تـه

مهجور صېب د رومانیت خبرې ډېرې پهٔ حیاناک انداز کښې کړې دي- چې د دهٔ حیا او دینداري ثابتوي - مختصر ده چې د مهجور صېب پهٔ شاعرۍ کښې ما دې هغه شخصیت ولیدهٔ چې د ګڼو اوصافو مجموعه ده - او لوستونکو ته هم بلنه ورکوم چې د مهجور صېب کلام د زړهٔ په سترګو ولولي ځکه چې دې هغه پهٔ کلام کښې خوند هم شته او پند هم-د غزل،نظم هر شعر یې په معنا پای ته رسي-

اوربېدلي مې دي مهجور صېب نن سبا ناجوړه دے رب العزت دې روغ صحت ورکړي چې دا د وختونو راهیسې ځلانده بل مشال مونږ ته زمونږ ته راتلونکي په حواله د رڼا وسیله و ګرځي - آمین

محمد اقبال محسود شکتوئ وال3-7-2021

# د مهجور صیب سره د هغۀ پۀ لیک کښې لیدۀ کاتۀ

د محمـــد خلیـــل مهجـــور صـــېب نـــوم مـــې ځـــو ځلـــه لـــۀ مظلومیـار صـېب اورېـدلی ؤ ــ هغـۀ بـه چـې کلـه د مهجـور صـېب د شـعر پـۀ حقلـه خبـره کولـه نـو ورسـره بـه یـې دا افسـوس هـم کـاوۀ چـې کـاش هغـۀ ځـان پـټ نـۀ وای سـاتلی ــ کـاش د خلیـل صـېب دولـس زره شـعرونه ضـایع شـوي نـۀ وای.....هغـۀ بـه بیـا بیـا دا خبـره کولـه چـې کـاش د هغـۀ شـعرونه د کتـاب پـۀ پـاڼو کښـې محفـوظ شـوي وای.نـن کـه یـو لـوری د مظلومیـار صـېب هغـه ارمـان تـر سـره کېـږي نـو بـل لـوری ، پتـه نشـته د مهجـور صـېب د اوږدو مـودو راهیسـې پـۀ سـینه کښـې سـاتلي ارمـان بـه څـۀ کېفیـت وي.ډېـر د خوښـۍ وختونـه دي چـې د مهجـور صـېب پـۀ شـعري ټولګـه کـار روان دی.مظلومیـار صـېب مـا تـه د کتـاب مسـوده وړانـدې کـړه او د لیـک غوښـتنه یـې وکـړه.مـا ورسـره هـو کـړه وکـړه او دا زمـا د خـوش بختـۍ انتهـا ده چـې زۀ د خلیـل صـېب پـۀ کتـاب لیـک کـوم.زۀ پېشـګي معـذرت غـواړم.ځکـه چـې پـوهېږم چـې د خلیـل صـېب پـۀ شـعر لیـک کـؤل زمـا د وس خبره نۀ ده.

د خلیـل صـېب شـعر دومـره ډېـر اړخونـه لـري چـې سـړی ورتـه ګوتـه پـۀ غـاښ پـاتې شـي. زۀ نـۀ شـم کـولی چـې د هـر اړخ سـره یـې

انصاف وکړم خو بیا هم هڅه کوم چې په لنډو ټکو کې په څو اړخونو خبره وکړم -

شکسپئر په یوهٔ نظم کښې خبره کړې چې انسان په ژوند کښې تر څو مرحلو راتېرېږي د هرې مرحلې خپل احساسات وي- د وړوکوالي خپل ضرورتونه او احساسات وي د ځوانۍ جذبات او احساسات بیا اکثر د "memory long" حصه جوړه شي خصوصاً د شاعر- د شاعر شعري ژوند زما په خیال د هغهٔ وخت نه ساه په اخستو شي چې کله هغه د یوې ښکلا د یو احساس اسیر شي- او ښکلا پخپله یو وسیع مفهوم او معنا لري- چې دلته یې ژباړل د لیک د مرام برخه نه ده- زما خیال دی چې د خلیل صیب د ځوانۍ د وخت اکثر شعرونه ضایع شوي دي- د "جانان" په حقله ډېر شعرونه د دهٔ په کتاب کښې نشته خو بیا هم دومره شته چې د سړي تنده پرې ماته شي- د مثال پهٔ توګه دا څو شعرونه....

سپین مخونه قرارونه د زړهٔ یوسي
وړي د سترګو نه خوبونه شونډې سرې-

تا د لوظونو د کتاب نه چې معنې اوویستې
ما پهٔ نا کړیو ګناهونو هم توبې اوویستې

د مجنون خیرې ښکلی ښکارې پهٔ صحرا ګرځوانه
پهٔ تا "روپۍ"مزه کوي اې د لیلا ګرځوانه

تهٔ مې یو ساعت لهٔ زړهٔ نه بهر نهٔ کړې
وایه کله ستا پهٔ زړهٔ کښې هم غرېږم؟

نخښـې مـو د یـو ځـای د ناسـتو ورانـې ویجـاړې شـوې
لارې مــو د تلــو او د راتلــو ورانــې ویجــاړې شــوې

د پـــاکې مینـــې پـــۀ جهـــان اورونـــه ولګېـــدل
پـــۀ خـــوارۀ تټکـــي د جانـــان اورونـــه ولګېـــدل

ســتا یادونــه کــه دي نــوي کــه زاړۀ دي قــدرمن دي
دا زمــا پــۀ پښــتون زړۀ کښــې مېلمانــۀ دي قــدرمن دي

ستا جـامې هـم ښـکلې ښکاري، ستا د مـخ ځـواب هـم نشـته
کــه دې تــورې غټــې ســترګې کــه بانــۀ دي قــدرمن دي

عشــق تــر یــوۀ کــس پــورې محــدوده نــۀ وي بلکــې د هغــۀ د ذات سـره تړلـې هـر څیـز د عشـق وطـن وګـرزي -د چـا د یـاد سـره تړلـې لار،د چـا و قـد ورتـه چینـار و نښـتر او د چـا د سـترګو د رنګونـو سـره تړلــي د الګــډ د اوبــو رنګونــه.... ان تــر دې چــې ټــول وطــن د ســړي جانـان شـي د وطـن مینـه د جانـان لـۀ مینـې زوروره ده- مهجـور صـېب هــم د وطــن مینــې زخمــي کــړی دی.هجــرت کــول او د خپــل وطــن پرېښــودنه د ژونــد ترخــه الميــه وه د مهجــور صــېب احساســات ټــول زخمي زخمي دي پۀ هر غزل کې یې د خپل وطن مرثیه لیکلې.

نـــــۀ یـــــې زوی نـــــۀ یـــــې لېـــــور شـــــته
پشـــــــــــــتونخوا ده هغـــــــــــــه کـــــــــــــونډه

صــــفت کــــوه د ګورګوټــــو زلفــــو شــــاعر دې مــــنم
فکــــر کــــوه د پښــــتنو هــــم ترجمــــان یــــې کــــه نــــه ؟

چې وېر د وران وزيرستان مې په غزل کې نهٔ وي
لکه چې ذکر د جانان مې په غزل کې نهٔ وي

ردي ټوکرۍ ته يې ور واچوئ او مه يې لولئ
چې درد او غم د خپل افغان مې په غزل کښې نهٔ وي

زغملې نوره نهٔ شو دا ګرمي وزيرستانه
سړه هوا به کله په مونږ لګي د پرېغل نه

د چا سپېرو سترګو خوړلې دی امکان نشته
ودان به خړ وزيرستان شي! نه هېڅ کله نه

مهجور صېب د چاپېريال د سياسي حالاتو نه هم ځان ښهٔ خبر ساتلی او کمال يې دا دی چې په چا پورې يې ځان نهٔ دی تړلی هغه چې څهٔ ويني هغه وايي چې څهٔ محسوسوي د هغې اظهار کوي.د ستايلو او غندلو پېمانه يې د تعصب نه مبرا ساتلې ده.

د اسلام دې يوه خبره هم ونهٔ کړه
ملا جانه هسې لاړې اسمبلي ته

اسلام نشته تش په نوم اسلام اباد دی
اسلام نه وايي په نوم مسلماني ته

لاس د خپلو پښتنو هم پکښې وينم
پښتونخوا چې زهٔ دې ګورم بربادي ته

وژل چــــې د مېــــرېي مــــلا صـــاحبه ګنـــاه بـــولي
روا شـــول قتلـــول ســـتا پـــهٔ تقريـــر د هغـــو خلکـــو

چـــې کشـــمير کشـــمير دې هـــر وخـــت وظيفـــه ده
پـــهٔ دا خلـــهٔ خـــو يـــو ځـــل يـــاده پښـــتونخواه کـــړه

مهجـور صـېب د خپـل کلتـور کلـک داعـي دی د حـالاتو د وجې زمونږ پـهٔ کلتـور کښـې چـې کـوم بـدلون را روان دي دغـي بـدلون مهجور صېب سخت دړدولی -

د مغـــــــرب تهذيبـــــــه خــــــوار شـــــــې
پښـــــــتنه دې کـــــــړه بـــربنـــــــده

خـدايګو چـې ګهـړې ورسـره هغسـې خونـد نـهٔ کـوي
خونـد چـې د بنګـړو وؤ پـهٔ مړونـد د پېغلـې جـل کښـې

ګيلـــه بـــه څـــوک کـــړي د خيـــرن نظـــر نـــه
چـــې پښـــتنو پېغلـــې پـــردې مـــاتې کـــړې

ســـتا پـــهٔ حيـــا چـــې قســـمونه خورمـــه
پښـــتنې خـــورې ســـتا پښـــتو تـــه ګـــورم

ورکـــې لـــوپټې شـــوې پښـــتنې ويـــنم ســـرتورې شـــوې
لاړل پښـــتانهٔ او غېرتونـــه وو چـــې خـــاورې شـــول

مهجور صيب د انسان سره د مينې داعي دی د هغهٔ مينه د انسانيت سره ده.د هغهٔ مينه سوچه ده د سرمايه دارانه نظام پهٔ وجه چې پهٔ انسانانو کښې کوم تفريق روان دی د هغې سخت خلاف دی .مهجور صيب هميشه د مزدور پهٔ درد دړد بېدلی ښکاري۔

غريب بنيان کښې هم خولې دی ! تهٔ خپل کوټ وګوره
دا پهٔ ګرمۍ کښې پهٔ غريب پورې خندا نهٔ ده. څهٔ ؟

بابا "روټۍ روټۍ" دا چغې د دې کور نه راځي
پهٔ دا مانۍ کښې دا سندرې دا ګډا نهٔ دا څهٔ

څوک يخو سيورو کښې خوبونه کوي
چا پهٔ سره نمر پهٔ ځان خولې ماتې کړي

بل ځای وايي چې:

زهٔ دا نهٔ وايم اشنا چې هر ژوندی د مرګي نهٔ دی
چې سامان د بل د ژوند کړي دا سړی د مرګي نهٔ دی

چې نفرت تربنه تښتېږي محبت ورغاړې وځي
دا پهٔ ژوند مئين که خپل دی که پردی د مرګي نهٔ دی

مهجور صيب د پښتنو بې اتفاقۍ هم ډېر ځورولی ...پهٔ غزل او نظم کښې د دې بې اتفاقۍ ذکر کړی:

ډېر ډېر مې څوروي يو والی نۀ شته پۀ پښتون کښې
مهجوره څۀ سبق به دې څوک واخلي د غزل نه

چې به پۀ يوه خله افغانان شي نا هېڅ کله نه
چې به پوره زما ارمان شي نا هېڅ کله نه

د ليک د اوږدلي له يرې د مهجور صېب په شاهکار نظمونه خبره نه شم کولی ځکه چې په لنډو ټکو کښې يې احاطه نه شي کېدلی او بيا که په قطعاتو او هايکو خبره وکړم لکه پۀ درياب کښې غوپې وهل دي او څوک چې زما غونډې نواي لمبوزن وي د ادب په پراخ دريابونو کښې شايد تر ساحل ورسره مټ وزرې مرسته نه وکړي۔
هغه دې لوستونکي خپل ولولي ځکه چې زما و ژباړلو ته اړتيا نه لري۔ پوره پوره کتابونه هومره نظمونه دي د معناو په لحاظ۔
اخر کښې به زۀ د مهجور صېب دعا او تمنا ورسره غبرګه کړم چې الله دې روغ صورت او اوږد عمر ورنصيب کړي۔آمين
د مهجور دي ارمانونه ټول پوره خو ياران وايي
د اويا کالو شاعر تر څۀ مودې د مرګي نۀ دي

پروفيسر اکبر علي ناياب
ډېره اسماعيل خان۔ پښتونخوا
3م جولايي 2021

# زما قدرمن استاجي ته

بسم الله الرحمن الرحيم

نـۀ پـوهیږم یـوه خوشـحالي محسوسـؤم -فکـر کـؤم چـې د دومـره زیـاتې خوشـحالۍ لامـل څه دی خو بیـا چـې د ګران محتـرم عـالیقدر اسـتاد ډاکټر محمد خلیل مهجور صیب شعري ټولګه (سـکروټې پـۀ ایـرو کښـې) د چاپ کؤلو هلې ځلې زړۀ ته راشي بیـا راتـه احسـاس وشـي او بـاوري شم چې زمـا پـه احساسـاتو کښـې دغـه ګڼه ګوڼه د دغـي کتـاب د ادب و دنیـاګۍ تـه راتلۀ دي- خـدای دې وکـړي چـې نـور دغـه اوږد انتظـار د بختـور پـای ټکـي ومومي -- اللهم آمین

د اسـتاد او ډاکټر محمـد خلیـل مهجـور صـیب د نـوم سره خـو بـه تقریبـاً هـر سـړی اشـنا وي ځکـه چـې محتـرم مهجـور صـیب تـه پروردګـار د حکمت لویه برخه ورکړې ده طبابـت او اسـتاذي دواړه داسـې مبارکې پېشـې دي چې د سړي هره ګړۍ د انسـانیت پۀ چوپړ کښـې تېریږي -

ما ته دغه سعادت حاصل دی او ویاړم چې زه په ښـوونځي کښـې د محترم مهجـور صـیب پنځـه کالـه شاګرد پـاتې شوی یم او دی مې اسـتاد پاتې شوی-

انتهـایي مخلـص دیانتـدار شخصیت لـري کـه ووایم چې د عصـر حاضر یو لوی برګزیده ولي انسان دی مبالغه به نۀ وي-

د رب مهربـاني ده الله ورلـه لویـه تقـوا ورکـړې ده کـه زۀ د محتـرم مهجور صېب پۀ شخصیت خپلو خبرو ته دوام ورکړم نو نۀ شم کولی چې زۀ د محترم صېب د شخصیت احاطه وکړم ځکه چې د کتـابونو شـانتې شخصـیت باندې کتابونه لیکل د قلم زور غـواړي- د محتـرم مهجـور صـېب پـۀ بـاب یـو ګړد کتاب خبرې هم کمې دي-

د محترم مهجور صېب ډېرې خاطرې راسره دي کـه د ټـولـو بیـانـول مې پېل کړل شاید زما د لیک مرام بـه وبـایلم- او نـۀ کومـه داسـې فـارمولا لا چا موندلې چې پـه لنډ ټکو کښـې ټـول ټکـي ځـای پـه ځـای کـړي-دې اسـتاد محترم د تقوٰی یوه لنډه قیصه درسره شریکؤم-

محتـرم صـېب پـۀ لاس یـوه راډو ګـړۍ تړلـه او مـا تـه بـل ملګـري ښودلې وه د استاد د تقوا حدونو ته سړی حېران شي- پۀ پنځـو کـالو کښـې چې پۀ ښوونځي کښې مو تېر کړل مـونږ د محتـرم صـېب پـۀ لاس کښـې هغـه قیمتي ګړۍ/ سات جوته / ښـکاره نۀ ولیدلـه دغـه د دۀ د تقـوا او پرهېزګـارۍ یو وړوکی مثال دی چې لا نورې به څومره خاطرې راسره وي خو لنډه ده چې د محترم مهجور صېب پۀ شخصیت او کردار باندې لیکـل زمـونږ د وس کـار نۀ دی ځکه چې پۀ خپل کمزوري فکر او قلم کښې دومره تـوان نۀ ویـنم خـو د زړۀ سوچه مینه ورته ډالۍ کؤم-

ذاتي پۀ ما ښېخې زیـات ګران دی او د دۀ پـۀ اړه زۀ د رحمـان بابـا دا یو بېت ډېر تکرارؤم چې:

کــه دې تـــا د ښـــکلې مـــخ عاشـــقان ډېـــر دي
زۀ پـــۀ ټولـــو کښــې اول یـــم دویـــم نـــۀ یـــم

رب دې مهجـور صـېب تـه روغ رمـټ صـحت نصـیب کـړي د خوشحالۍ ډک ژوند ورته غواړم- امین ثم امین

د محترم صېب شعري ټولګه ( سکروټې پۀ ایرو کښې ) ما تقریباً ټکي پۀ ټکي ولوستله داسې لیک دې پۀ ګړده پښتونخوا کښې یو نیم کوي لکه څنګه چې مهجور صېب کړی دی- واقعي چې الله ورلـه ډېر څۀ ورکړي دي- نوم د خدای، هر غزل کښې یې د پښـتون قـام سره د مینې اظهـار کړی دی د پښتنو غم دړد یې د ځان غم دړد بللی دی-

ځکه چې محترم صېب یو بېت کښې وایي:

ژړا بــه ســتا پــۀ جـدایۍ ښــکلیه زۀ بیـا کوُمــه
ماتـــه لا ډېـــرې مرثیـــې د پښـــتنو پـــاتې دي

یقیناً چې د پښتنو غمونو دړدونو یې سینه غلبېل کړې ده د خپل وطـن خپلې خـاورې خپـل قـام سره یې زړۀ لکـه د مقنـاتیس نښـتلی دي هـره پښتنه مور یې مور او خور یې خور بللې د-

او د پښتنې خور د پړدې پۀ باب محترم صېب خپله لهجه کښې وایي

پښـتانې خـورې ډېـر دې کوشـلې دي شـنکي خولینـه
پښــتو تــه کســه بــچ کــوه خپــل غېراتــي خولینــه

خیــرن نظــر وو ویرتــه کــو ځونــاور داســې هــن شــته
پــټ ســوته مــخ او پــۀ چــا مــه وینــه بیخــي خولینــه

لنډه ده چې د خپل پښتون قام سره یې پۀ هر غزل کښې د مینې او وروروليۍ اظهار کړی دی دا خو یې ما پۀ غزل یو څو کرښـې لیـک وکړ ګني هسې خو که د دۀ پۀ غزل کتاب خبرې وشي کمې به وي او دې نه عـلاوه یـې کـه د نظـم برخـه وګـورو نـو سـړی ورتـه انګشـت بدنـدان شي-د دۀ د احسـاس درک د دۀ د نظم نۀ کیږي ځکه چې شاعر خو هسې هم حساس وي چې نظم یې

وګورې هم دغه د پښتنو ویر او غوغا ده پکښې- نظمونه یې زړۀ وړونکي دي لکه په مثال یو نظم چې د یوۀ لېوني پۀ مرګ یې لیکلی یا د یو سوالګر /ملنګ د خبراتونو پۀ غوښتلو یې روداد لیکلی او داسې نور شاهکار نظمونه-که دلته ووایم چې هر غزل هر نظم یې د سرو پۀ تار پېیلي دی مبالغه به نۀ وي- الله تعالی دې نور استعداد ورکړي- محترم د جنګ پۀ وخت د خپل کلي وطن نه کډه وکړه او نن سبا د رڼاګانو ستر ښار کراچۍ کښې د ژوند شپې ورځې تېروي-

استاد مهجور صیب ناجوړه دی د کتاب لوستونکو ته خواست دی چې په خپلو دعاګانو کښې یې هېر نۀ کړئ-په مینه او درنښت

محزون جان

بولاړي پل کوټړي سینده

30-6-2021

# هغه ځلانده ستوری

بسم الله الرحمن الرحیم

نن هغه بختوره ورځ ده چې د کومې ورځې موږ له مودو راهسې پهٔ انتظار تږي وو- چې نن زما د استاد علیقدر ډاکټر محمدخلیل مهجور صېب شعري ټولګه ( سکروټې پهٔ ایرو کښې) چاپ ته برابره شوه او د پښتو ادب ځولۍ ته یوه بله زرینه تحفه ډالۍ کیږي-

هسې خو د یو چا پهٔ شخصیت ، ژوند او فن خبرې کول یو ګران کار دی خو بیا هم د خپل استاد پیر پهٔ باب قلم پورته کؤل شاګرد ته پهٔ ترورمۍ کښې بې ډېوې ګرځېدل دي-

د عالیقدر ډاکټر مهجور صېب پهٔ ژوند لیک کؤل زما د وس کار نهٔ دی-

ځکه چې که د محترم مهجور صېب پهٔ ژوند کتابونه ولیکل شي زهٔ وایم چې دا به کم وي-خو زهٔ به دومره ووایم هغه د پښتو یوه ټپه مې یاده شي چې:

یار د تعریف محتاجه نهٔ دی

پهٔ عطرونو ګلان چا لمبلي دینه

یابل ځای کښې اباسین صېب وایي:

که زما د شخصیت حدونه ګورې

زما فن زما د فکر ترجمان دی

عالیقدر مهجور صېب د وزیرستان د ادب د پاره د ملا د تیر حثېیت لري او د وزیرستان د ادب یو ځلېدونکی ستوری دی-

محترم مهجور صېب هغه وخت د ادب پۀ مېدان کښې قدم کېښود چې زمونږ پۀ سیمه کښې ادب د نشت برابر ؤ - او خلکو به شاعر ته پۀ سپک نظر کتل او بل د یارانو نشتوالی ؤ- خو بیا هم محترم مهجور صېب خپل استقامت او مرام د لاسه ور نۀ کړ او د خپلې ژبې پښتو ادب خدمت یې جاري و ساتلو لکه چې مهجور صېب وایي:

تیارې چې لرې کړو هر خوا ته مو رڼا رڼا شي
راځئ ملګرو چې د مینې مشالونه بل کړو

د دغو مشرانو استاذانو استقامت او برکت دی چې نن مونږ هم د پښتو ادب سره اشنا یو او زمونږ سیمه د ادب په ښکلا ښایسته ده.

ما به کله کله د ګران زړۀ ته راتېر استاد محترم محزون جان صېب نه د عالیقدر مهجور صېب اشعار او غزل اورېدل چې زۀ ډېر ترېنه متاثر شؤم او ما به د ځان سره خوندي کؤل او د دۀ د غزلو نه به مې روستو خوند اخستو-

بیا مې چې کله پۀ موبایل خبرې ورسره وشوې خبرې یې له اشعارو هم خوږې و درنې وې- چې یو ځل خبرې شروع کړي تۀ به وایې د خولې نه یې ملغلرې تویېږي - زړۀ به دې غواړي چې خبرې یې د پای ټکی نۀ ومومي زما یې لیدل ډېر ارمان ؤ-

اخېر وخت یاري وکړه زۀ مې زړۀ ته نږدې استاد محزون جان سره کراچۍ سلطان اباد ته د محترم مهجور صیب حجرې ته وراغلم د محترم صېب لیدل زما د ژوند تر ټولو خوندره خاطره وه.زما پۀ خپلو سترګو د یقین نۀ راتلو- د عالیقدر صېب خوش مزاجي او مینې معصومیت تاثرات داسې وو لکه ما چې ټول عمر د دۀ صحبت کښې تېر کړی وي-

نوراني څهره او خوږې خبرې لکه د شاتو - محترم صېب د بر عليل ۀ خو بيا يې هم ټوله ورځ زمونږ سره پۀ حجره کښې تېره کړه پۀ هغه لنډ وخت کښې چې ما کوم فيض ترې حاصل کړو زما د ژوند تر ټولو لويه سرمايه ده- زۀ پـۀ دې ويـاړم او خوښـي محسوسـؤم چې مـا تـه د عليقـدر سـره د صحبت شرف حاصل شو او مونږ ترې د برې زدکړې وکړې-

مهجور صېب يو عـالم، مينـه نـاک، ځيـرک او وطنپـال شخصيت دی-

تل د پښتنو پۀ دړد دردېدلی دی لکه چې مهجور صېب وايي

پـردي جنـګ کښــې د ګـل غونـډې ځـوانی چـې د چـا لاړې
پــۀ ورانــه پښــتونخوا کښــې کــوم ويــر د هغــو خلکــو

محترم صېب بل ځای وايي:

نــــۀ يــــې زوی نــــۀ يــــې لېــــور شــــته
پښــــــــــتونخوا ده هغـــــــــه کونـــــــــډه

د مغـــــــرب تهذيبـــــــه خـــــوار شـــــې
پښــــــــتنه دې کــــــــړه بربنـــــــــډه

مهجـــور ســـتا مينـــه کښـــې ســـوځې
نـــۀ لـــوګی شـــو نـــۀ غـــر غنـــډه

بل ځای محترم صيب وايي چې:

غـــم د هـــرې لـــوپټې بـــه درســـره وي
چــې جينــۍ د پښــتونخوا دې خــور او لــور شــي

زړۀ مــې چــوي چــې غريــب د ګــران وطــن مــې
د ظـــالم د لاســـه پړمخـــې نســـکور شـــي

او بل ځای کې وايي:

ماضـي يـې پېـژنم او حــال تــه يــې چــې ګورمــه زۀ
پـۀ مســتقبل د پښــتونخوا مــې بــاور پــاتې نــۀ شــو

او ځان د حالاتو پخپله قصوروار بولي او پښتنې پېغلې ته وايي-

ځـۀ خـو ګـرم يـو خپـل ځـۀ د حـالاتو پـۀ قصـور کښـې
ورو شـوه حيـا ختمـه د پښـتون پـۀ خـور او لـور کښـې
خــورې پښــتنې بــې ســتره مــه ګرځــه پېــدا کــړه
کومــه غېرتــې جذبــه چــې وه ملالــۍ تــرور کښــې

او پۀ اخير کښې لاس په دعا يم چې خداى دې ګران مهجور صېب
ته د ځۀ مودې لپاره روغ او د خوښۍ ژوند ورکړي آمين ثم آمين
او د خپل ليک اختتام پۀ دې يوې ټپې سره کوم چې:

ناروغه ياره خداى دې روغ کړه
خلک به وايي بخت يې خوار دى يار يې مرينه

پۀ درانښت
امان مانتوى وال وزير
بولاړي پل کوټړي سيند
4-7-2021

# خپلي خبري

زما د کتاب په حقله زما ملګرو ډېر په زړه پوري لیکونه کړي دي-
خو په تېره تېره ګران مظلومیار صېب( نور ملګري دې خفه کېږي نه) د پوره کتاب یوه هنداره ئي لوستونکیو ته وړاندې کړې ده-
خدا ے دې د ده په عمر کښې برکت، په قلم کښې زور او په پښتو ادب کښې لوړ مقام نصیب کړي- امین-
زه دا نه وایم چې زما نورو ملګرو څه زیار نه دے کړے-دوي ډېر قدرمن لیکونه کړي دي- چې زه ورته د قدر او ویاړ په نظر ګورم-
زما په خړه پړه او ګډه وډه شاعرۍ ستر پوهاند پروفېسر اکبر علي نایاب صېبچې کوم خوندور لیک کړے دے- زه د هغه د شکریې ادا کولو توان هم نه لرم- نور به زه دلته خپل مشر شاعر ملګرے نور عالم صېب هم د شکریې په زانګو کښې وزنګوم- او دعاګانې ورته کوم- زه د غائبانه لیک د ښو احساساتو د پاره د اقبال شکتوئي وال صېب ،مخزون جان صېب اؤ امان مانتوئي وال صېب هم ډېره ډېره مننه کوم- او دعاګانې ورته کوم-

این دعا از ما و از جمله جهان آمین باد

محمد خلیل مسید له کراچۍ نه

ضروري یادګېرنه:په کتاب کښې ځاے په ځاے چرته د پنجابي ذکر شوے دے- هغه څه په بدنیتۍ یا د سیاسي ګوند سره د تړون په وجه هرګز نه دے-زه محب وطن پاکستانے یم- او چرته د پاکستان د سالمیت او یو والي مخالف نه یم- ما تر اویا کالو پورې د کوم سیاسي ګوند سره نه خو تړون لرلے دے- او نه د ملک خلاف په کومې سرګرمۍ کښې مې برخه اخستې ده- (مهجور)

# دعا

ایمـــان کلـــک پـــه محمـــد ص اخـــر زمـــان را
او صـــفت تـــه یـــې بیـــا ژبـــه د حســـان رض را

صداقت خدایه نصیب مې د صدیق رض کړې
نمونـــه د عـــدل هـــم عمـــر رض پـــه شـــان را

نعمتونـــــه د دنیـــــا فـــــراوان راکـــــړې
ســـخاوت لـــره بیـــا زړهٔ هـــم د عثمـــان رض را

قـــوت ماتـــه د خیبـــر شـــکن حیـــدر رض را
وړوکـــوالي کښـــې بیـــا پوهـــه د ایمـــان را

ربـــه زمکـــه یـــم پیـــدا یمـــه لـــه خـــاورې
اطاعـــت لـــره لـــویې لکـــه اســـمان را

دغه سوال مې خدایه ستا په در قبول کړې
مـــا مهجـــور تـــه ربـــه صـــبر عـــالي شـــان را

«««« »»»»

په هيڅ يؤ کس د خوا ؤ شا مې باور پاتې نۀ شو
ګرانه اشنا اَن چې په تا مې باور پاتې نۀ شو

د زلفو مار چيچلے يؤ دې هم پرې روغ نۀ کړلو
يارو والله ستا په هودا مې باور پاتې نۀ شو

چې هر ظالم ته پۀ رکوع او په سجده دې وينم
ستا خو په آ او هم په دا مې باور پاتې نۀ شو

په سپينه ږيره مې بتان د زړه کعبه کښې پراته
د خپل زړګي په پياوړتيا مې باور پاتې نۀ شو

چې ماتــه یــؤ څــه ځــان تــه بــل څــه خوښــوي ملګــرو
پــه دغــه شــېخ پــه دا مــلا مــې بــاور پــاتې نــۀ شــو

چــې مــې د شــپې د ور پــه درز د کــور دننــه ګــورې
ســتا د تنخــوا پــه دا ســودا مــې بــاور پــاتې نــۀ شــو

ماضــي یــې پېــژنم او حــال تــه چــې یــې ګورمــه زۀ
پــه مســتقبل د پښــتونخوا مــې بــاور پــاتې نــۀ شــو

چې کــور تــه راشــي د تبلیــغ نــه نــو بیــا بــل څــه کــوي
عبــث پــه ســېل ســتا د دنیــا مــې بــاور پــاتې نــه شــو

مهجــور چــې ګرانــې پښــتونخوا تــه تــل دعــا کــؤلې
قبــولې نــۀ شــوې پــه دعــا مــې بــاور پــاتې نــۀ شــو

««««»»»»

دلـــۍ دلـــۍ مـــې لا پـــه زړۀ د انديښـــنو پـــاتې دي
يـــاره خطـــرې د رقيبـــانو د فتنـــو پـــاتې دي

څـه خـو مـې خيـال د پـاتې شـويو ارمـانونو سـاته
ډېـر پـوره شـوي دي مرګيـه بـس يـؤ څـو پـاتې دي

ژړا بـه سـتا پـه جـدايۍ ښـکليه زۀ بيـا کومـه
مـا تـه لا ډېـرې مرثيـې د پښـتنو پـاتې دي

د پښـتو نخښـه يـې شـملې تـا بـه ضـرور نېغـؤم
لا مرحلـې د حفاظـت د لوپټـو پـاتې دي

يـؤ ښـکلے بـاب شـي د تـاريخ تـرې جوړېـدلے اشـنا
دومـره قيصـې د رنګـو پنګـو هـديرو پـاتې دي

زۀ یـــې تراوســـه هـــم عظیمـــې خزانـــې ګڼمـــه
ماســـره پنـــدې د یـــادونو پخوانـــو پـــاتې دي

لېـــونے غـــواړي لېونتـــوب د ازادۍ خوندونـــه
ورکـــوي زور یـــو څـــوکړۍ د زولنـــو پـــاتې دي

مـــا تـــه پـــه کومـــه خلـــۀ پېغـــور د بـــې ننګـــۍ راکـــوې
د خـــان زامنـــه تـــا کښـــې هـــم څـــه د پښـــتو پـــاتې دي؟

ســـپرلیه اوس هارونـــه نـــه جـــوړؤم ولـــې راغلـــې
لا څـــو څـــو شـــپې د چـــادلارې د کتـــو پـــاتې دي

پـــوی شـــه مهجوره!کـــه بېـــدار دې پښـــتون وورونـــۀ شـــؤلو
چـــې دې وختونـــه د ســـلګو او اســـوېلو پـــاتې دي

«««« »»»»

ستا یادونه که دي نوي که زاړۀ دي قدر من دي
دا زما په پښتون زړۀ کښې مېلمانۀ دي قدرمن دي

تۀ تپوس د هغو مۀ کړه چې هر څه زما په زړۀ دي
ما د پاره چې هر څه هم ستا په زړۀ دي قدر من دي

ستا د کوټ او پتلون قدر د خان زویه دلته نشته
چې جامه یې د پښتون وي که شپانۀ دي قدرمن دي

په ژړا مې هم زړګي چې ترینه نۀ سپکیږي یاره
ستا غمونه که هر څومره هم درانۀ دي قدرمن دي

ستا جامې هم ښکلې ښکاري ستا دمخ هم ځواب نشته
که دې تورې غتې سترګې که بانۀ دي قدر من دي

پیوند ه او فقیر ا یپي ښکلوي یې خلق ثلې
چې ژوندي وو قدرمن وو او چې مړۀ دي قدرمن دي

یم امین د روایاتو د تېر شوو پښتنو زۀ
زما کور په صندوقې کښې لا پراتۀ قدرمن دي

یوسف مخیه په راتلو دې یم خوشحاله خو په تلو نه
ما مهجور ته دې که تلۀ دي که راتلۀ دي قدر من دي

«««««»»»»

د ورو ورو څیزونــــو غلـــۀ هـــم شـــته دي
او د ډکـــو صـــندوقونو غلـــۀ هـــم شـــته دي

دا مـــنم د ځنګلونـــو غلـــۀ هـــم شـــته دي
خـــو د خوشـــیو ګړنګونـــو غلـــۀ هـــم شـــته دي

یـــۀ نظـــر وربانـــدې واچـــوي زړۀ یوســـي
زړور داســـې د زورونـــو غلـــۀ هـــم شـــته دي

خیـــال کـــوه او ډېرهوښـــیار اوســـه ګـــل مخیـــه
ســـتا پـــه چـــم کښـــې دګلونـــو غلـــۀ هـــم شـــته دي

خزانـــې د پښـــتونخوا د غرونـــو یوســـي
د دې دنګـــو دنګـــو غرونـــو غلـــۀ هـــم شـــته دي

پټـــوي د خُلـــې خبـــرې هـــم مهجـــوره
کـــه منـــې چـــې د شـــعرونو غلـــۀ هـــم شـــته دي

«««« »»»»

روغ سـرے يمـه پـۀ څـۀ نـۀ يـم دلبـره
خـو پـه زړۀ دننـه ښـۀ نـۀ يـم دلبـره

چـې پـه کـاڼي دلانـه يمـه ويشـتلے
بختـور يمـه سـپېرۀ نـۀ يـم دلبـره

غـم خـو دا دے چې لا ستا پـه دې کښې شک دے
چـې دې زۀ حـلا ل پسـۀ نـۀ يـم دلبـره

کـه مـې نـور خلـق کـافر بـولي بـاک نشـته
د مـلا صـاحب پـه خلـۀ نـۀ يـم دلبـره

چـې تـنکےځلمے پـه سـرو وينـو کښـې پـروت وي
خـدايېګو ټولـه شـپه اودۀ نـۀ يـم دلبـره

پـه اودس کښـې دې ديـدن تـه زۀ راځمـه
مـه کـړه خيـال بـې اودا سـۀ نـۀ يـم دلبـره

چـې مهجـور دې لټـوي تـۀ نـۀ مونـد يږي
چـې مـې غـواړې بيـا بـه زۀ نـۀ يـم دلبـره

«««««»»»»

اے خدايـــه ســـاتندوی شـــی د تقـــدير د هغوخلقـــو
چــې روغ شــي زخمــي زړونــه پــه تــدبير د هغوخلقــو

په عشق اوملي ننګ کښې چې رحمان اوخوشحال خان شي
شــهرت دې پــه دنيــا کښــې عــالمګير د هغــو خلقــو

خپــل وطــن کښــې حــق د پښــتنوغواړي نــواو ګــوره
لاس کښـــې زولنۍ پښوکښـــې زنځيـــر د هغوخلقـــو

نازونــه هــم چــې وړے شــي او شــمله هــم ټيټــوي نــۀ
د ښـــکليو محفلونـــه دي جـــاګير د هغوخلقـــو

وژل چـــې د میـــرېي مــــلا صــــاحبه ګنـــــاه بـــولي
روا شـــــو قتلؤل ســـــتا پــــه تقریــــرد هغو خلقـــــو

پـردي جنـګ کښـې دګـل غونـدې ځـوانۍچې د چـا لاړې
پـــه ورانـــه پښـــتونخوا کښـــې کـــوم ویـــرد هغوخلقـــو

چــې هــیڅ یــې هــم د جنــګ ترهګــرۍ ســره کــار نــۀ ؤ
د ختمــو مېلــې رنګــې کړےخنزیـــر د هغـــو خلقـــو

چې خپـل جانـان یې خپـل شي او رقیـب لـه منځـه اوباسي
مهجـــوره کـــه منـــې چـــې زۀ یـــم پیـــر د هغـــو خلقـــو

«««« »»»»

بیـــا چـــې زړهٔ مــــې نــــن ژړا کــــوي دا ثــــه دي
یــــار د چــــا ســــره خنــــدا کــــوي دا ثــــه دي

د تنکـــــي ځلمـــــي مــــرګې کــــه ظلــــم نــــهٔ د ے
بیـــا چــــې دا پــــه پښــــتونخوا کــــوي دا ثــــه دي

کــــور مــــې ړنــــګ شــــو در پــــه در چــــې ګرځــــوي مــــې
ظالمــــان پــــه خلــــهٔ د چــــا کــــوي دا ثــــه دي

زمــــا کــــور کښــــې دي د ســــرو وینــــو ډنډونــــه
د ے پــــه خپــــل کــــور کښــــې ګــــډا کــــوي دا ثــــه دي

د ګلونــــو لَــــو مــــې ګــــډ شــــو ځکــــه ژاړم
خپــــل پــــردي چــــې داپــــه مــــا کــــوي دا ثــــه دي

پــــه بــــدل کښــــې د وفــــا دې هــــم مهجــــوره!
چــــې دې یــــار ځــــومره جفــــا کــــوي دا ثــــه دي

«««««»»»»

زۀ دي ټــــول نازونــــه وړمــــه دا وفــــا نــــۀ ده څــــه؟
تــۀ مــې بېګــا ســبا رټــې دغــه جفــا نــۀ ده څــه؟

غریـب بنیـان کښـې هـم خولې دے تـه خپـل کوټ اوګـوره
دا پــه ګرمـۍ کښــې پــه غریـب پـورې خنـدا نـۀ ده څـه؟

،، بابـا روټـۍ روټـۍ،، دا چغـې د دې کـور نـه راځـې
پــه دا مــاڼۍ کښــې دا ســندرې دا ګــډا نــۀ ده څــه

حــق د واکــدارو دے مــنم د دنیــا ټــولې مــزې
زمــا د پــاره یــې روا هــم تمنــا نــۀ ده څــه؟

ستـا د پنځـو سـتورو هوټـل کښـې شـته شراب او شـباب
وچــه ډوډۍ مالــه تنبــو کښــې هــم روا نــۀ ده څــه؟

چې پـه دې ملـک کښـې تـرې تـر ټولـو زیاتـه وینـه تـوی شـوه
مهجــوره پېژنــې زمــونږه پښــتونخوا نــۀ ده څــه؟

«««««»»»»

دا مازغـــه مـــې تښـــتېدلي ســـره ګرځـــي
چـــې رقيـــب زمـــا د ښـــکلي ســـره ګرځـــي

سـکه ورونـه چـې پـه يـۀ کـور کښـې او سـيږي
پکـــار نـــۀ ده چـــې تـــر ينګلـــي ســـره ګرځـــي

يـۀ جهـان شـي غرېـو نيـولے بـوره مـور چـې
د يـــۀ ســـري زوی د څلـــي ســـره ګرځـــي

پـام کـوه لکـه چـې ورکـه چرتـه غـواړي
يـــۀ ســـړے د تـــا د کلـــي ســـره ګرځـــي

رقيـب ژاړي چـې مهجـور او جانـان يـۀ ځـاے
دۀ پـــه ســـترګو دي ليـــدلي ســـره ګرځـــي

«««« »»»»

چـا تــه دي پــه ټــول عمــر خــوږې خبــرې اونــهٔ کــړې
چـا تــه دي خــوارہ پــه نــوم تــر خــې خبـرې اونــهٔ کــړې

وچـې رښــتیا وایــه پــه چـا ښــهٔ لګــې کــه بــد لګــې
چــرې پـــه لونـــده ژبـــه لونـــدې خبـــرې اونــهٔ کــړې

مــا چــې زلفــې یــادې کــړې ســپین مخــې راتــه اووئیــل
بیــا ګــورې پــه ســپینه ورځ د شــپې خبــرې اونــهٔ کــړې

برنــد مــې پــه غوښــتنه شــو ،وې خبــردار شــه یــاد لــره
بیــا چــې پــه دا خلــهٔ زمــا د خلــې خبــرې اونــهٔ کــړې

زړهٔ مــې چــې بــې واکــه شــي پــه واک ســترګو تــه اووایــه
دغــه کلــک ســړي تــه چــې پســتې خبــرې اونــهٔ کــړې

ځــه رېبــاره یــار تــه وایــه هغــه څــهٔ چــې زه وایــم
ګــوره ســم ســړے یــې چــې کــږې خبــرې اونــهٔ کــړې

ښــهٔ شــوه چــې دې اوخنــدل مهجــور تــه د عــادت خــلاف
نــن دې پــه تــرؤه تنــدې تــروې خبــرې اونــهٔ کــړې

««««»»»»

غرور دے شیطاني صفت دهوکې دې خطرناکې
بې ځایه غورې ټرې او لافې دې خطرناکې

بې فکره پکښې مۀ ګرځه اشنا وزیرستان دے
دا غرونه پالې نارې او کندې دې خطرناکې

منم چې ستا وسله ده زوراوره خو دا واوره
زمونږه پخوانۍ زړې وسلې دي خطرناکې

رقیب په غصه راغے په اوږه ټوپک نیولے
په مونږ وینې چې نن مې ارادې دي خطرناکې

مسلم په لا اله باندې جنګیږي بې وسلې نه
کافر په دا یقین چې یې فتنې دي خطرناکې

مهجوره! هدیرو د شهیدانو کښې ډیر ګرځه
دښمن ته تر ژوندو دا هدیرې دي خطرناکې

«««»»»»

خیال چې نۀ کړي نوره منده
شي جذبه د تخلیق شنده

نۀ يې زوی نۀ يې لېور شته
پښتونخوا ده هغه کونډه

د مغرب تهذیبه خوار شې
پښتنه دې کړه بربنډه

مهجور ستا مینه کښې سوځي
څه لوګے شي څه غرغنډه

««««»»»»

ډي ائي خان 2005م

څه خو ګرم یو خپل څه د حالاتو په قصور کښې
رو شوه حیا ختمه د پښتون په لور او خور کښې

لونږه د حوا ته هم اسمان له شرمه شین شو
ما چې څه لیدلي په دا سترګو دي لاهور کښې

یؤ چوپتیا وي بل کښې لوبې ماشومان کوي
فرق دے فقط دا په یوه مېله او په کور کښې

زوی چې څومره خوږ او خوش اخلاقه وي نوسیال یې؛
نشته دے په ورور نۀ په عزیز نۀ په تربور کښې

خورې پښتنې بې ستره مۀ ګرځه پیدا کړه؛
کومه غېرتي جذبه چې وه ملاله تور کښې

خوري یې د غریب نهر بچي نو غورځوه یې مۀ
نیمه سوځېدلي هم روټۍ ستا په تنور کښې

مینه که ګناه وي نو بې شکه ګناهګار یمه
نور څه ګناه نۀ وینم لالیه په مهجور کښې

«««« »»»»

خیـــال کـــوه نظـــره پـــه شـــپو تـــورو د مـــزل کښـــې
د پـــرې بلاګـــانې دي د زلفـــو پـــه ځنګـــل کښـــې

خـــدایګو چـــې ګهـــړۍ ورســـره هغسې خونـــد نـــهٔ کـــوي
خونـــد چـــې د بنګـــړو ؤ پـــه مړونـــد د پېغلـــې جـــل کښـــې

تـــب جنـــې مـــې جـــذبې کـــړي د ســـرو وینـــو قطارونـــه
خـــوب کښـــې وینـــم ځـــان چـــې پـــه ژړا یـــم پـــه محفـــل کښـــې

خونـــد ؤ د غـــزا د تېـــر و تـــورو پـــه پړکـــار کښـــې
پـــروت چـــې شـــهیدان وو ســـړے ســـبوري د پرېغـــل کښـــې

تـــورې ســـترګې مـــهٔ راځـــه څـــه چـــل د ســـپېلنو کـــوم
د پـــرې ســـپیرې ســـترګې دي زمـــونږ پـــه چـــاپېر چـــل کښـــې

خپـــل بچـــي دې ګرځـــي د لنـــدن مســـتې هـــوا کښـــې
زوی د غریـــب جـــوړ کـــړې خودکشـــی تـــه پـــه چـــل ول کښـــې

ذکـــر د بنګـــړو پـــه ځـــای د ســـرو وینـــو پکـــار دے
دا کـــه نـــهٔ وي خونـــد نشـــته مهجـــوره پـــه غـــزل کښـــې

««««»»»»

مینه ښـــۀ وي چــې د مینـــې پـــه دســـتور شـــي
بـــې دســـتوره مینـــه هـــر چـــا تـــه پېغـــور شـــي

غـــــم د هـــــرې لـــــوپټې بـــــه درســـــره وي
چـــې جینـــۍ د پښـــتونخوا د لـــور او خـــور شـــي

زړۀ مـــې چـــوي چـــې غریـــب د ګـــران وطـــن مـــې؛
د ظـــالم د لاســـه پـــر مخـــې نســـکور شـــي

چـــې رڼـــا د مـــخ ښـــکاره کـــړې بیـــا مـــې بـــولې
زۀ موســـیٰ شـــمه کوڅـــه دې کـــوه طـــور شـــي

پـــه نفـــرت کښـــې خـــو تربـــور هـــم زمـــا ورور دے
خـــو پـــه مینـــه کښـــې خپـــل ورور زمـــا تربـــور شـــي

مهجـــــور هغـــــه بـــــد قســـــمته شـــــاعر زۀ یـــــم
چـــې ژړا مـــې د زړګـــي هـــم ټنـــګ ټکـــور شـــي

«««««»»»»

مئ کال 1972م

یادګېرنـه: دلتـه د موسـیٰ او کـوه طـور هسـې د تشبهـ پـه توګـه استعمال شوي دي- زما مطلب دا هر ګز نۀ دے چې ګنې پېغمبر نۀ منمه او نۀ کېدے شي-هسې نۀ چې څوک راباندې د کفر فتوا اولګوي-

تا د راتلو خپلې وعدې ماتې کړې
ما هم په نه زړه ګلدستې ماتې کړې

چا چې د بل د کور ویړې ماتې کړې
د خپل محل یې هم تنبې ماتې کړې

خبر ککرو د هوښیارانو تـه خبر
که لېونیانو زولنې ماتې کړې

ګیله به څوک کړي د خیرن نظر نه
چې پښتنو پېغلو پردې ماتې کړې

څوک یخو سپورو کښې خوبونه کوي
چا په سره نمر په ځان خولې ماتې کړې

دې تا کچه غوندې ځوانۍ د خلقو
ډېرې پخې پخې توبې ماتې کړې

زما په کور کښې مړې ډېوې مهجوره!
د رڼاګانو سلسلې ماتې کړې

«««««»»»»

په سترګو د دوربين کښې دا څه بله فلسفه ده
په ګل کښې هر بلبل ته د حبيب محب قيصه ده

قلم چې د صابر وينې د زړهٔ څڅوي بيت شي
زړګے هم د شاعر په خدا ے چې سمه غم کده ده

په سترګودخوشحال کښې شاعري حيض الرجال دے
غزل کښې د رحمٰن د درويشانو يؤ قيصه ده

نازيږي ابدالي چې دا رازونه د شاهۍ دي
په خيال کښې د بابر ژوند د خوندونو يؤ موقه ده

حمزه جنت ته هم بې پښتو نهٔ درومي يارانو
غني ته پښتونخوا بس د لعلونو خزانه ده

ژوندے هلاکو خان يا چنګيز خان شو داسې ښکاري
په ګران وزيرستان باندې يې کړې بيا حمله ده

اوبه راځي د چا د لوريه خړې يې په چا کړې
معلوم دي کار کونکي خو د ټول کلي کږه ده

چې کوم کو ډګر په ګران وزيرستان وکړلې کوډې
کوم ځاے چې به ګلونه ټوقېدل هلته مورچه ده

چې نيا هم پکښې ناوې ښکاري ماته خندا راشي بس
لږه چې وي ټيډي کمالي توره برقه ده

اے د وخت چنګېزه ستا به هم راځي نېټه د مرګ
اے نن خو دې په خلځ نوم اخستل هم يوه فتنه ده

څه کار چې چرته اوشي ګناه ګار بې ګناه نشته
څوک هم چې مخ ته راغے نو خطا کړې هغه ده

مهجور ته دې قسم وي چې څه برخه پکښې واخلي
پکار د پښتونخوا چې قصيده که مرثيه ده

««««»»»»

زۀ دا نـۀ وایـم اشـنا چـې هـر ژونـد ے د مرګـي نـۀ د ے
چـې سـامان د بـل د ژونـد کـړي دا سـړے د مرګـي نـۀ د ے

مفکـر شـي خـاورو لانـدې خـو فکرونـه يـې ژونـدي وي
چـې د قـام فکـر کـوي چـې چرتـه د ے د مرګـي نـۀ د ے

زړۀ دې کـاڼے د ے ظالمـه څـه بـې وختـه دې تيـار کـړو
دا تنکـۍ ځـواني يـې ګـوره دا ځلمـے د مرګـي نـۀ د ے

چـــې نفـــرت ترينـــه تښـــتيږي محبـــت ورغـــاړه وزي
دا پـه ژونـد مـين کـه خپـل د ے کـه پـرد ے د مرګـي نـۀ د ے

د دې ځـــوان د زنګـــدن هـــره ســـلګۍ د ارمـــان ډکـــه
ربـــه دا د ارمـــانونو ډک زړګـــے د مرګـــي نـــۀ د ے

تـهٔ خـو خپـل سـپي تـه بېګـا سـبا شـاوده ورکـوه خـان يـې
غريـب دې نهـر مـړ شـي خـو سـتا سـپے د مرګـي نـهٔ د ے

تـهٔ چې ملک هم ټول يؤبولې بيـا پـه يـو ملک کښـې دننـه
دا پښـتون دې خبـرد ے مري خـو پنجـابے دمرګـي نـهٔ د ے

يـؤ تـه بم پـه لاس کښـې ورکـړې بـل کـاپـۍ او کتـاب لـولي
د يـؤ مـرګ سـتا ضـرورت دا بـل بچـے د مرګـي نـهٔ د ے

مصـــور تـــه مـــرګے راشـــي تصـــويرونه کلـــه نـــهٔ مـــري
چې ظلمونـه کـړي تصـوير مهجـوره! د ے د مرګـي نـهٔ د ے

د مهجـــور دي ارمانونـــه ټـــول پـــوره خـــو يـــاران وايـــي
د اويـــا کـــالو شـــاعر تـــر څـــه مـــود ے د مرګـــي نـــهٔ د ے

««««»»»»

د لویو خلقو د فکرونو سره لوبې کؤم
لکه ماشوم د کتابونو سره لوبې کؤم

له مجبورۍ ورځ په خندا تېروم خلقو سره
د شپې ژړا کوم غمونو سره لوبې کؤم

اکثر د هجر په دوزخ کښې یم خو کله کله
ستا د وصال د جنتونو سره لوبې کؤم

بندي خانې افسره مۀ ویرېږه تښتمه نۀ
زۀ د مړوند د زنځیرونو سره لوبې کوم

يمــه پښــتون زمــا بــې ســرو ســاماني مــۀ ګــوره
زۀ طـــاقتور مغـــرور ملکونـــو ســـره لـــوبې کـــؤم

پـــه ســـپينه ږيـــره چـــې اســـتازي د مرګـــي ووينم
زه د نيمګړيـــو ارمـــانونو ســـره لـــوبې کـــؤم

شـــايد چـــې خلقـــو تـــه بـــه ښـــکارم لېـــونې غوندې زۀ
زۀ د ځـــوان مرګـــو د قبرونـــو ســـره لـــوبې کـــؤم

مهجوره!کلـه هـم چـې څـوک زمـا پـه خوا کښـې نـۀ وي
ســـتا د خـــوږو يـــادونو ســـره لـــوبې کـــؤم

««««»»»»

اګست کال 2006م

لـــري چرتـــه ځوابونـــه شـــونډې ســـرې
شـــرموي ســـرۀ ګلابونـــه شـــونډې ســـرې

کـــــړې دنیـــــا د زړۀ بدلـــــه را بدلـــــه
راولـــــي انقلابونـــــه شـــــونډې ســـــرې

ســـپين مخونـــه قرارونـــه د زړۀ يوســـي
وړي د ســـترګو نـــه خوبونـــه شـــونډې ســـرې

ګرانـــې! وايـــه د چـــا خوبنـــه دې تـــالا کـــړه
دا چـــې راغلـــې ســـره لاســـونه شـــونډې ســـرې

تـــورې زلفـــې تـــورې ســـترګې چـــې څـــه بـــولې
دي د میـــو ډک جامونـــه شـــونډې ســـرې

تصـــور د ښـــکلي يـــار کـــوه مهجـــوره!
تـــورې زلفـــې ولونـــه ولونـــه شـــونډې ســـرې

«««««»»»»

جماعت هشتم مډل اسکول کړمه کال1964م

د مغرب تهذيب چې اورسېد کمال ته
اوس به درومي ننداره يې کړه زوال ته

تا راکړې چې وه نخښه مسافره
ژاړم هر سبا بېګا هغه رومال ته

د پښتون په لر و بر کښې چې وېش پوخ شي
شابه زور ورکړه تور مخيه خپل دېوال ته

چې شني ونې يې په سر باندې ګډا کړي
تا تره لغړ سر نۀ رسي شوال ته

مـــزدوري بـــه کـــؤم زۀ خـــړو جـــامو کښـــې
پښـــتنې ســـتا د پـــردې ســـتا ښـــکلي شـــال تـــه

ګـــډې وډې ليـــوني زړۀ تـــه رادرومـــې
د ښـــو بـــدو انتظـــار کـــؤم ســـتا خيـــال تـــه

پېغـــام ورکـــړه د يـــؤ والـــي پښـــتنو تـــه
د ژونـــدون اعتبـــار نشـــته نـــوي کـــال تـــه

د پښـــتون پـــه ماضـــي مـــه ژاړه مهجـــوره!
کـــړه يـــې فکـــر مســـتقبل تـــه ګـــوره حـــال تـــه

«««««»»»»

تـا کـه ايښـے بيـا پـه زلفـو کښـې ول نـۀ وے
زۀ لګيــا بــه د تيــارو پــه مــزل نــۀ وے

عاشـــقي بوالهوســـي بـــه ســـره يـــو وو
کــه پــه مينــه کښــې ۇ دار تــه ختــل نــۀ وے

کـاش چـې نـۀ وے رقيبـان او ښـکلي ډېـر وے
دا سـپېره ازغـي پـه ځنـګ کښـې دګـل نـۀ وے

کــس نــاکس بــه نــۀ ليــدې پښــتنې خــورې
کـــه بـــې وختـــه دې وتـــل رواتـــل نـــۀ وے

زړۀ مـې غـواړي چـې ښـکاره مـې مينـه نـۀ شـي
چـې هيڅـوک مـې پـه دې لاره کښـې مـل نـۀ وے

د مهجـــور پـــه عاشـــقۍ بـــه څـــوک خبـــر ۇ
کـــه لـــيکلے يـــې دا ښـــکلے غـــزل نـــۀ وے

«««« »»»»

نــوره دې غـــوارم ابـــادي ډېـــر مـــې پـــه تـــا وژړل
بــس زيـاتي ګـل اوسـې مـا ډېـر پـه پښـتونخوا وژړل

دا د ســـلګو چـــې نـــامعلوم غونـــدې اواز اورمـــه
چـــې دا بـــاز ګشـــت زمـــا د ويـــر ؤ کـــه بـــل چـــا وژړل

مـا خـوب ليـدو چـې څـوک پښـتو د دوزخ ژبـه بـولي
پـــه دا خبـــره ســـتر حمـــزه تـــر مـــخ زمـــا وژړل

دلتـه ځوانـان پـه وينـو سـره هلتـه يـې بـورې مينـدې
پـــه چغـــو چغـــو مـــې پـــه آاو هـــم پـــه دا وژړل

څوک پــه مــلا پســې لګیــادي څــوک منبــر مــاتوي
پــــه بـــې وســـۍ مــــې د منبــــر او د مــــلا وژړل

مالــــه ژړا وه توبــــه کــــړې د خنــــدا نیــــت مــــې ؤ
خــو دې خپــل لــوټې لــوټې کــور تــه مــې نــن بیــا وژړل

تــځ نــا پــوره ارمــان تــه نــځ ګــورې نېمګــړې دنیــا
کــــه چــــا مرګیــــه د ارمــــان پــــه نیمګړتیــــا وژړل

مــــا ټــــوقې نــــځ دي زده مهجــــوره پــــه قســــم اومنــــه
مــــا چــــې پــــه چــــا هــــم وژړل مــــا پــــه رښــــتیا وژړل

«««««»»»»

لاره کښې ناست يم لاروۀ ته ګورم
د چا بې پامه تېرېدو ته ګورم

ما ته د مينې مزل ګران ښکاري چې؛
د زمانې سړو تودو ته ګورم

ستا په حيا چې قسمونه خورمه
پښتنې خورې ستا پښتو ته ګورم

مصيبت نۀ دے مصيبت د مينې
زۀ په دې چل خپلو پردو ته ګورم

وائې ظالم چې کله زۀ مهجوره!
د غريبانو ۀ سلګو ته ګورم

««««»»»»

کال 1972م

وايه رښتيا چې ته غلط په دې ګمان يې که نه
دا نور د زمکې دي او يؤ ته د اسمان يې که نه

ظالمه زړۀ خو دې لا غواړي نورې سرې وينې هم
وايه پښېمان په دې بې وخته مرګ دځوان يې که نه

چې د کاروان منځې د سر نه ښکه پورته ګورې
څه ژړېدلے په رنګ پنګ وزيرستان يې که نه؟

د کشمير ظلم د لمحه لمحه په خلۀ دے جاري
په پښتونخوا چې کوي ظلم بې زبان يې که نه

صفت کوه د ګوړ ګوتي زلفو شاعر يې منم
فکر کوه د پښتنو هم ترجمان يې که نه؟

ته په تشبيه او په تلميح باندې ځان مۀ کړوه
مهجوره وايه خوښ په امن او امان يې که نه!

«««««»»»»

يادګېرنه:کشمير زما هم د زړه سر غدار نه يم

اے سړیه لږ خپل کار ته فکر وکړه
چې پرې نور ځي هغه لار ته فکر وکړه

غم د خپتې دے د قام په نوم اخستے
د وطن هر یؤ واکدار ته فکر وکړه

ستا د کور د پردې خيال نۀ ساتي ګوره
د خپل کور دې څوکيدار ته فکر وکړه

دا زړګے مې دے جوړ وران وزیرستان کړو
خدائے ته ګوره لږ دې خوار ته فکر وکړه

د وطن غنم پلوري جيبونه ډک کړي
ووټ دې ورکړو اوس دا پلار ته فکر وکړه

وطن خوار شو هر څه لاړل سوئيزر لېنډ ته
اے مجهوره دې سرکار ته فکر وکړه

«««««»»»»

قیصه د خوږې مینې اختتام ته کله رسي
رښا د داسې نمر ده چې ماښام ته کله رسي

دا داسې وخت تیري ده د اسرار او رموز ډکه
چې وخت ورته ولاړ وي دا انجام ته کله رسي

فرهاد او شیرینۍ او د لیلیٰ مجنون خبرې
په داسې کنایو کښې څوک پیغام ته کله رسي

ژوندون داسې سفر دے مسافر ته پته نشته
د نمر سپوږمۍ په تګ کښې به مقام ته کله رسي

شاهي سترګو لیدلے څه کمال ؤ په ایاز کښې
ډېر لوے لوے وزیران هم دې غلام ته کله رسي

یؤ بل ته د یارۍ نمائشي غاړه وتل خو؛
د لرې نه په زړۀ دعا سلام ته کله رسي

تۀ نوے مین نۀ یې اے مهجوره! هسې زړۀ خورې
ستا شعر د تازه مین کلام ته کله رسي

«««« »»»»

مــدام بــه نــۀ وي دا ځــواني دا هــم پــه خيــال کښــې ســاته
د دنيــا هــر څــه دي فــاني دا هــم پــه خيــال کښــې ســاته

پښــــتنې خــــورې دا خبــــره تاتــــه نــــۀ ده بايــــدۀ
,, زمــا صــورت زمــا مرضــي، ،دا هــم پــه خيــال کښــې ســاته

د خــــان زامنــــه دا خــــاني درتــــه د پــــلار پــــاتې ده
او ســتا تــر ژونــد بــه وي خــاني دا هــم پــه خيــال کښــې ســاته

تمــه د ګــل تــرې مــۀ ســاته د چــا پــه زړۀ کښــې چــې تــه
کــرې بېګــا ســبا ازغــي دا هــم پــه خيــال کښــې ســاته

څــه ټــوقې نــۀ دي دا ,, کورونـــا ،، حفاظـــت تـــرې کـــوه
د نـــن ســـبا دا بیمـــاري دا هـــم پـــه خیـــال کښـــې ســـاته

دخـــان زامنـــه د غریـــب بچـــي یـــې خـــوري قســـم د ے
خوراک دې کم کړه د خپـل سپي دا هم پـه خیـال کښـې سـاته

دا تـــورې زلفـــې ډېـــرې مـــۀ څېـــره زمـــا نظـــره
وي پـه ځنګـل کښـې ازمـري دا هـم پـه خیـال کښـې سـاته

چـــې دالهـــام سلســـله کلـــه هـــم شـــي بنـــد مهجـــوره!
بیـا پـه زور مـۀ کړه شـاعري دا هـم پـه خیـال کښـې سـاته

««««»»»»

زخمـــي زړونـــو تـــه ازار مـــه جـــوړوه
خــدا ے تــه ګــوره نــن ســينګار مــه جــوړوه

تـــورې زلفـــې تـــار پـــه تـــار مـــه جـــوړوه
شـــنه خالونـــه پـــه قطـــار مـــه جـــوړوه

نــن مــې يــاد کــړه چــې ژونــد ے يم ګرانــه يــاره
پــس لــه مرګــه مــې ,,يــاد ګــار،، مــه جــوړوه

پـــوخ ســـړک د اميرانـــو تـــر بنګلـــو ځـــي
د غريـــب تـــر کـــوره لار مـــه جـــوړوه

حُســـن هغـــه چـــې ښـــکلا وي ډېـــر مخيـــزه
يـــؤ ســـپين مـــخ يـــې هـــم معيـــار مـــه جـــوړوه

کـــه دېـــوال د ختـــو کـــور مـــې د ے پرېـــوتے
هـــر ســـړي تـــه پکښـــې لار مـــه جـــوړوه

احتـــرام د هـــر ســـړي کـــوه مهجـــوره!
خـــو د هـــر ســـړي نـــه پـــلار مـــه جـــوړوه

«««»»»»

جمرود کال 1970م

تـــا د لوظونـــو د کتـــاب نـــه چـــې وعـــدې اوویســـتې
مـــا پـــه نـــاکړیو ګنـــاهونو هـــم تـــوبې اوویســـتې

ســـتا پـــه تراخـــو او پـــه خـــوږو خبـــرو ســـم پوهېـــدم
رېبـــار هوښـــیار ؤ پـــه تراخـــو کښـــې یـــې خـــوږې اوویســـتې

اســـتعماري لمـــن دې چـــا تـــه څنـــډولې چـــې ده
د خوشـــحالۍ پـــه بهانـــه دې تـــرې جـــامې اوویســـتې

د راز ورغـــومي بـــه دې شـــي تـــول د لېوانـــو خـــوراک
د زړۀ لـــه شـــپول دې د رازونـــو کـــه رمـــې اوویســـتې

شـــاید کمـــے زمـــا د لوریـــه د اظهـــار وي پکښـــې
زمـــا د شـــعر نـــه هـــر ســـړي بېلـــې معنـــې اوویســـتې

د زړۀ ملنګـــه تـــش کچکـــول لا د ارمـــان ګرځـــوې
د زیـــارتونو دې پـــه ډېـــر طلـــب کـــولمې اوویســـتې

د تـــورو زلفـــو پـــه ځنګـــل کښـــې خطرنـــاکې منـــډې
مهجـــوره! هســـې دې پـــه ځـــان بانـــدې خـــولې اوویســـتې

«««««»»»»

د مجنون خيرې ښکلې ښکاري په صحرا ګرېوانه
په تا روپی مزه کوي اے د ليلا ګرېوانه

تنې دې پرې دي څه ببوسه ،بې څښتنه غوندې
لاره کښې پروت يې بڅه بګيرې اې د چا ګرېوانه

هيله د چا د راتګ شته خوکه دا هيله نۀ وه
نن خو مزې کړه خېر دې نشته دے سبا ګرېوانه

چا کړې د دين په نامه بڅه چا د دنيا په هيله
چا نه دې وژغورو د ګرانې پښتونخوا ګرېوانه

دلته مې ورور په وينو سور دے هلته کونډه مې خور
د چا د چا په غم دې وخيرم زما ګرېوانه

مهجور تر څو به پټ غمونه پټ له خلقو ساتم
پرېږده چې خيرې دې نن ووينې د نيا ګرېوانه

«««««»»»»

پکـــار پـــه ژبـــه دې چـــې وشـــي قېمتـــي خبـــرې
یـــا د الله یـــا د رســـول او یـــا قـــامي خبـــرې

تـــهٔ خامخـــا کـــوه پښـــتونه د خپـــل حـــق خبـــرې
کـــه نـــهٔ دې اوري د تـــور مخـــي ده مرضـــي خبـــرې

پښـــتون کـــه یـــؤ نـــهٔ شـــي پنجـــره بـــه پښـــتونخوا وګرځـــي
وي بـــه خبـــرې د پښـــتون بـــس د طـــوطي خبـــرې

معیـــار د حُســـن یـــؤ ســـپین مـــخ نـــهٔ دے فقـــط لالیـــه
دا ډېـــر ارخونـــه لـــري نـــهٔ د یـــؤ مخکـــي خبـــرې

پېغـــام شـــپېلۍ کښـــې د ســـاتنې د رمـــې ورکـــوي
پېغـــام د قـــام ســـاتنه جـــوړ کـــړه د شـــپونکي خبـــرې

راوړې ســـپېره نصـــیب مهجـــوره! د پرېغـــل لـــه خـــوا نـــه
اوس نـــورې پرېـــږده بـــس کـــوه د یوکـــاڼکي خبـــرې

«««««»»»»

څه له مې چېږې ګله! يادونه وو چې خاورې شؤل
ګل چې شوې غنچې نو لا ګلونه وو چې خاورې شؤل

رنګ ځلي چې ګورې نو بيا دومره فکر هم کوه
دا هم د چا ښکلي وجودونه وو چې خاورې شؤل

ورکې لوپټې شوې پښتنې وينم سرتورې نن
لاړل پښتانه او غېرتونه وو چې خاورې شؤل

زړۀ مې هديره ده او پرې نوم ځکه د تا ږدمه
دلته ستا وعدې وې ستا لوظونه وو چې خاورې شؤل

نن په زړبوډۍ کښې راته هېڅرې دا مه وايه
څومره دې مهجوره ارمانونه وو چې خاورې شؤل

««««»»»»

قسم چې ستا د مینې نه ښۀ کلک مې وخوړو
شکي شوم بیا مې اوخوړو چې سپک مې وخوړو

ښامار ته د تربور د حسد هیڅ هم پته نه لګي
چې لوی مې اوخوړو او که هلک مې وخوړو

اے کاش د ورور ولې د خلې نه یو ځلې دا واورمه
پتې مې ورور ته ورکړو ترے پالک مې وخوړو

غریب وم خو د خان روپۍ واپس مې د زکات کړے
زۀ زمکه وم خو شکر د ے فلک مې وخوړو

رحمت شو راته ستا د تورو زلفو په تیاره کښې
پېزوان مې په لاس راغے چې تیندک مې وخوړو

مهجوره! خلق تلل چې نن د خان کره دعوت د ے
زۀ پاتې شوم د مور د لاس سوکړک مې وخوړو

«««« »»»»

دا ننني سره ويشو مونږ د يؤ بل غمونه
نۀ به وي ستا او نۀ زما د برخې تل غمونه

ستا د وصال سره سره په تصور د بيلتون
ماته له ورايه چينګې داړې خندېدل غمونه

هغه يادونه ستا د شونډو سپين رخسار وو کنه
ماته په سرو سپينو جاموکښې پټېدل غمونه

اشنا د درستې دنياګۍ په غم به اونۀ رسو
راشه چې وګورود کلي چاپېر چل غمونه

وېره د ويـر د خوشـحالۍ پـه ډمـامو کښـې هـم وي
پـه يـوه خنـدا پسـې رادرومـي دلتـه سـل غمونـه

ورانـه ويجـاړه دنيـاګۍ د خـوار زړګـي وه دومـره
راتلـل راتلـل خـو پـه راتلو کښـې شـرمېدل غمونـه

نـورې دنيـا تـرې پـه خنـدا خنـدا مـزې اخسـتې
پـه پښـتونخوا چـې لـه اسـمانه ورېـدل غمونـه

هغـه اوس خپـل ګرځـي مـلا ماتـه د غـم پېټـي پـه سـر
چـې د هـر چـا د زړهٔ پـه زمکـه يـې کـرل غمونـه

مهجـوره! هـر چـا تـه د زغـم پـه قـدر اورسـېدل
پـه وېشـندي شـه آفـرين چـې يـې وېشـل غمونـه

«««««»»»»

مالیــــاره راوړه خپـــل صـــاحب تـــه ننني ګلونـــه
پــه ګلدسـته کښـې یــې خــوښ نــۀ دي پرونــي ګلونــه

دې تــا پــه مېــز دي ګلدسـتې د ســرو ګلونـو پراتـې
ماتــه پراتــه دي پــه ســرو وینــو کښــې ځلمــي ګلونــه

خپـل بـاغ سـاتي خـو د ګـل چـین دا تـور مخـي تـه ګـوره
پـــردي امېـــل تـــه پښتونخوا کښـــې شـــوکوي ګلونـــه

پــه خصــمانه د مالیــار هــم مقابــل نــۀ شــي کېــدے
د پښـــتونخوا د ســـرو ګلونـــو پنجـــابي ګلونـــه

معیـــار د حُســن انتخــاب د چــا وي څــه د چــا څــه
د چــا ســرې شــونډې او دچــا ســرۀ اننګــي ګلونــه

د ګـــل صـــفت چـــې کـــوې بـــد پـــه ازغـــو هـــم مـــه وایـــه
د کـــس نـــا کـــس د لاســـه ژغـــوري دا ازغـــي ګلونـــه

فرق د سپېره رقیب او خور رېبار په مینځ کښې دا د ے
د یو خبرې وي ازغي بل وروي ګلونه

ماته بهار او خزان ستا دا پستې شونډې ښایي
دا یؤ سپړدي ګلونه بل د ے غوځوي ګلونه

کړو ستا د شونډو هم رنګی ګلاب د ګلو باچا
ګنې په بوی کښې څه کم نهٔ دي د ببري ګلونه

خیال کوه نن په پښتونخوا کښې چې تهٔ څنګه رېبې
دا سې رېبلې تا پخوا وو بنګالي ګلونه

مهجوره! څوک خپلو ګلونو ته قبرونه کیندي
څوک په مزه خپلو غوړونو کښې ټومبي ګلونه

««««»»»»

د پـــاکي مينـــي پـــه جهـــان اورونـــه ولګېـــدل
پـــه خـــوارۀ ټکـــي د جانـــان اورونـــه ولګېـــدل

زمـــا د ډېـــرې خـــوږې ســـيمې بـــدبختۍ تـــه ګـــوره
پکښـــې ابـــرې شـــولو ځوانـــان اورونـــه ولګېـــدل

د بـــل د پـــاره مـــو چـــې خپلـــه پښـــتونخوا ورانـــه کـــړه
د خپلـــه لاســـه د نقصـــان اورونـــه ولګېـــدل

تنکـــۍ ځـــواني کښـــې ارمانونـــه غرونـــه غرونـــه پراتـــه
پـــه غرونـــو غرونـــو د ارمـــان اورونـــه ولګېـــدل

چـــې ژړنـــې مشـــر شـــي د کلـــي تبـــاهۍ لـــه بـــس دے
ژړنـــي د کلـــي شـــو مشـــران اورونـــه ولګېـــدل

مهجـــوره! ګتـــې د دنيـــا چـــا پکښـــې ډېـــرې وکـــړې
د ځينـــو خلقـــو پـــه ايمـــان اورونـــه ولګېـــدل

««««»»»»

د وحــــدت نـــه د کثـــرت پـــه لـــور پربـــږم
خـــدا ے خبـــر چـــې د خلیـــل؏ ســـره ســـمېږم

تـــه پـــه یـــوه خنـــدا قســـم زمـــا نـــه واخلـــه
چـــې عـــالم مـــې ژړوي زهٔ بـــه خنـــدېږم

کـــه دې پـــوے کـــړم پـــه رمـــوز د تـــورو ســـترګو
بیـــا بـــه ســـتا پـــه ړنجـــولي ســـر پـــوهیږم

خپلـې مـړې ایـرې بـه بلـې کـړم چـې پـوے شـم
چـــې د کلـــي نـــه لېـــږدم کـــه پـــاتې کېـــږم

تقدس د هر تړون دومره خيرن شو
چاته ،،خپل ،،وئيلے نۀ شمه شرميږم

يم ډيوه تورو تيارو د چاپېرچل ته
د حالاتو سېلۍ تېرې شوې بلېږم

ته مې يؤ ساعت له زړۀ نه بهر نۀ کړې
وايه چرې ستا په زړۀ کښې هم غړېږم

تصور د لالي هم د ده راتلل دي
مهجور ځکه په جامو کښې نه ځايېږم

«««»»»»

يادګېرنه: دا شعر د پښتو د يوې مشهورې ټپې تر اثر لاندې ما ليکلے دے -ټپه څه داسې وه:
په سترګو تا راته اونۀ کړل
په رنجولي سر دې زۀ نۀ پوهېدمه

ګرد د غربت د چا په ښې ځوانۍ بې وخته لګي
د چا په سر ایښې کړې پګړۍ بې وخته لګي

یؤ د خزان وچې سپېرې هوا په مخ ورې ته
د سپرلي ډکې د ورمو سیلۍ بې وخته لګي

لیک د دېوال چې اپوته د غرور سترګې وینې
د مات قلم ژبه تتۍ تتۍ بې وخته لګي

په صورت روغ په خندا شنه استعماري ذهن ته
د یؤ غریب د خوړین بدن سلګۍ بې وخته لګي

چا ته غصه یې ته له قهره چا ته شونډې چیچې
د ګل په پاڼو پام کوه ږلۍ بې وخته لګي

چې په زړۀ سرې وینې وي پنډې خلۀ ترخه له غمه
ست د سرو شونډو او خوږې خو لګۍ بې وخته لګي

په سربازي کښې د غیرت مهجوره مخکښې مخکښې
دا دي غلط چې په سینه ګولۍ بې وخته لګي

««««»»»»

دا یادونـــــه دي د چـــا چــــې ژړوي مــــې
د ځــوانۍ لـــه درانـــۀ خوبـــه ویښــوي مــې

شـــپه د هجــر کښـــې ســـړې ســـیلۍ د ژمـــي
څـــه تیـــرې غونـــدې ارې دي غوڅـــوي مــې

پښــــتنې شــــملې مــــې داســــې راتــــه اووې
،،مــه مــې ږده پــه داســې سر چــې ټیټــوي مــې،،

لېونتــــوب د مینــــې برخــــه د هغــــوي شــــه
چــې مــې ګــرم پــه مینــه بــولي پوهــوي مــې

اننګــي دې هــم ګــلاب دي هــم ســـکروټې
پـــه یـــؤ دم مـــې ســـوزوي هـــم لوبـــوي مـــې

مشـــورې دي بیـــا تیـــار اوســـه مهجـــوره!
چـې مـې کلـي کښـې پربـږدي کـه لیـږدوي مـې

«««««»»»»

چې ویر د وران وزیرستان مې په غزل کښې نۀ وي
لکه چې ذکر د جانان مې په غزل کښې نۀ وي

زمکه د زړۀ هم وي سوکړه سترګو کښې اوښکې نۀ وي
افسوس دعا هم د باران مې په غزل کښې نۀ وي

ردي ټوکرۍ ته يې ورواچوئ او مۀ يې لولئ
چې درد او غم د خپل افغان مې په غزل کښې نۀ وي

خپل يې هم ولولئ او بل ته يې هم اورسوئ
قيصه د قام چې د نقصان مې په غزل کښې نۀ وي

خوند د بې مالګې روټئ هم پکښې نۀ وي مجهوره!
کله چې ذکر د خپل ګران مې په غزل کښې نۀ وي

«««« »»»»

بيا دې نوے غم راواچوۀ زړګي ته
بس دے نۀ مې شي زړۀ نوره زندګي ته

لاس د خپلو پښتنو هم پکښې وينم
پښتونخوا چې زۀ دې ګورم بربادي ته

که دې زړۀ غواړي چې ګل مومې بلبله
نو اول لاسونه واچوه ازغي ته

په لاس ورشي چې ثواب ملا صاحب ته
کړې تيار يې تنکے ځوانه فدائي ته

د اســـلام د یـــوه خبـــره هـــم ونـــه کـــړه
مـــلا جانـــه هســـې لاړې اســـمبلي تـــه

اسلام نشـته تـش پـه نـوم اسـلام اباد دے
اسـلام نـۀ وایـي پـه نـوم مسـلماني تـه

ځـانمرګي پـردو بچـو تـه ثـواب بـولې
دا سـبق بـه کلـه وایـي خپـل بچـي تـه

پـه الـزام د ترهګـر بـه ګرفتـار شـې
خیـال کـوه مهجـوره! خپلـه شـاعري تـه

«««««»»»»

نخښــې مــو د یـؤ ځــا ے د ناســتو ورانــې ویجــاړې شــوې
لارې مـــو د تلـــو او د راتلـــو ورانـــې ویجـــاړې شـــوې

پورتـــه کـــه اوبـــه د زوراور اوختـــې څـــه اوشـــو
مېلـــې د غریـــب د اوســـېدو ورانـــې ویجـــاړې شـــوې

پلونــه چــې د ژرنــدې ګرځــې یـؤ بــل تــه څــه نــۀ وایــې
مــنځ کښــې یــې کــولمې بــس د دانــو ورانــې وې ویجــاړې شــوې

تــور کارغــان چــې راغلــل ګــل ورینــه ســیمه خــړه شــوه
جــوړې ځــالې پرېښــوې ګوګوشــتو ورانــې ویجــاړې شــوې

هـار نصـيب د هـر ګـل نـۀ وي د اسـې ګـلان شـته چـې يـې
پـــانړې د مـــزار پـــه ګلدســـتو ورانـــې ويجـــاړې شـــوې

وه د سياســـت قيصـــه مـــلا غلطـــه پېښـــه کـــړه
مينـځ کښـې خپـل خـانې د پښـتنو ورانـې ويجـاړې شـوې

ګـنځ لکـه ملنـګ چـې پـه يـوه سـپږه پسـې اوسـېځي
مېلـې مـو پـه شـر بـس د يـؤ څـو ورانـې ويجـاړې شـوې

زور خـــو لګـــوي مهجـــوره بيـــا بـــه لېـــونے ګـــورې
بـــس کـــه څـــو کـــړې د زولنـــو ورانـــې ويجـــاړې شـــوې

«««««»»»»

نـا ممکــن دي چــې پــوره شــي لیکــل غــواړي
ســتا صــفت د حُســن یــاره لیــدل غــواړي

پــه پــردو خلقــو ګمــان د ورور د مــرګ کــړې
دا ګمـــان پـــه خپلـــو خلقـــو اول غـــواړي

شـــنې جـــامې د ګلبدنـــه دومـــره خونـــد کـــړي
لکـــه شـــنې پـــاڼې ښـــکلا چـــې د ګـــل غـــواړي

لاړل ســـتا بچـــي ســـبلونو د لنـــدن تـــه
شـــاګردان دې پـــه ســـرو وینـــو لامبـــل غـــواړي

تضـــاداتو د تـــدریس تـــه دې حېـــران یـــم
یـــؤ بچـــے کتـــاب ټوپـــک پـــه لاس بـــل غـــواړي

پـــه کاغـــذ چـــې د لوســـتونکي اوښـــکې تـــوی شـــي
اے مهجـــوره زړهٔ مـــې داســـې غـــزل غـــواړي

«««« »»»»

تـــار د میـنــــې ترنګـــوم پـــه ابـــتلا کښـــې
پټـــوم ســـرې ســـلګۍ زۀ پـــه خنـــدا کښـــې

ارادې مــــــې د تســــــخیر د کائنــــــات دي
نـــن کـــه ســـترګې غړومـــه پـــه خـــلا کښـــې

چـــې دې ګـــورم ســـر تاپـــا د وطـــن ځوانـــه
کـوټ پتلـون يـې نـور څـه نۀ ویـنم پـه تـا کښـې

چـم ګاونـډ ورلـه راځـي تـه ورلـه راشـه
پـه مړیـدو د ے سـتا مـین سـبا ببګـا کښـې

کـــور محلـــت د عاشـــقانو پکـــار نـــۀ وي
د مـــین ځـــولۍ پراتـــې وي پـــه بېـــدیا کښـــې

چـــې دې زړۀ نـــه ژاړي مـــۀ ژاړه مهجـــوره!
زیـــان د دیـــن او دایمـــان دی پـــه ریـــا کښـــې

«««««»»»»

راشـــه نـــن خـــو مـــې د زړۀ ورکـــه ســـودا کـــړه
دا ســـــپېره رقيـــب خـــو يـــاره پـــه ژړا کـــړه

دي روانـــې اوښـــکې ځـــي خفـــا لـــه زړۀ نـــه
يـــاره راشـــه مېلمنـــې ســـره پخـــلا کـــړه

چـــې کشـــمير کشـــمير دې هـــر وخـــت وظيفـــه ده
پـــه دا خلـــۀ خـــو يـــؤ ځـــل يـــاده پښـــتونخوا کـــړه

پـــه دا خيـــال چـــې پـــه دېـــوال پـــورې هـــم غـــوږ دي
د رقيـــب لـــه ويـــرې مـــا دېـــوال تـــه شـــا کـــړه

چـــې زمـــا او ســـتا پـــه حـــال وه رقيـــب کـــړے
وه ترخـــه خبـــره تاتـــه خـــوږه مـــا کـــړه

دمرګـــي فرشـــتې ماتـــه وېـــل مهجـــوره!
زر پـــوره خپـــل ارمانونـــه پـــه دنيـــا کـــړه

«««««»»»»

څه فکر د انجام نۀ کړي جذبې چې لېونۍ شي
سروي کاندي غټ غرونه ارادې چې لېونۍ شي

هیڅ غم ورسره نۀ وي د حدیث د پېغمبر بیا
ماتیږي لرې وځي به رشتې چې لېونۍ شي

پوره پوره ښارونه هم کودري کړي د ختو
مني د سمندر هم نه چپې چې لېونۍ شي

نظام د کائنات هم خپل په خپله ټول چلیږي
منکرې د خالق شي عقیدې چې لېونۍ شي

غریب شي د افکارو د څه فکر توان یې نهٔ وي
د ژوند کندو لېږو کښې فلسفې چې لېونۍ شي

بېګا سبا ودانې د ګودر غاړې وې عامې
خو ګرانې شي پېدا د چا غرمې چې لېونۍ شي

خبره ده یوه عامه لېونتوب د عام سړي خو ؛
جوړیږي ډېر نقصان غټې ګزمې چې لېونۍ شي

لوګے چې کوي زړهٔ نو اسویلي خېژي له خلې نه
مهجوره ابرې هر څه کړي لمبې چې لېونۍ شي

«««««»»»»

ربـــه د للمـــې دا بـــاران خـــو رانـــه مـــه کمـــوه
او زمـــا دا ښـــو یـــاران خـــو رانـــه مـــه کمـــوه

پـه ډک محفـل کښـې مـې پـه چـا دي چـې دا سـترګې خـوږې
پــه ډک محفــل کښــې دا یــؤ ګــران خــو رانــه مــه کمــوه

زمـــا پـــه زړۀ چـــې دي هغـــه یـــې پـــه تنـــدي لیکلـــي
د خـــوار زړګـــی دا ترجمـــان خـــو رانـــه مـــه کمـــوه

غمجـــن زړګـــي تـــه د اظهـــار مـــې یـــوه ټپـــه پـــاتې ده
دا یکـــه زار او یاقربـــان خـــو رانـــه مـــه کمـــوه

د بـــږه ګرېـــوان مـــې راتـــه بـــس دي دا ښـــو روغـــې تنـــۍ
دا ښـــو تنـــۍ د بـــږه ګرېـــوان خـــو رانـــه مـــه کمـــوه

د ایمـــان برخـــه ده مهجـــوره دا رښـــتیا وئیـــل هـــم
ربـــه دا برخـــه د ایمـــان خـــو رانـــه مـــه کمـــوه

«««««»»»»

اشنا چې ماسره نن راغے د ځنګزن نه بغیر
رقیب ځان یوړو په نوکارو د پمن نه بغېر

د ناکامۍ په غم چې مات کاندې خپل سر په تېشه
یا به پښتون وي یا بل څوک نه د کوهکن نه بغېر

یؤ پنجابي چې په مورچه کښې هوا خلاصه کړله
پښتون خندل چې ځان له ښۀ وم د ټیزن نه بغېر

پښتنې خورې ستا زړه لوپته ښۀ ښکارېده
مشکنې یې ښکلې وې په خدا ے چې د چلمن نه بغېر

چې دي سـورلۍ تـه د غـرور نـه مـوټر نـۀ خوښـېدو
پـه ګـور کښـې نـن درسـره شـته څـه؟ د کفـن نـه بغېـر

راشــي يادونــه دې زړګــي تــه ورســره تــۀ نــۀ وے
رمـې څـوک نـۀ پرېږدي ځنګـل کښـې د څښـتن نـه بغېـر

تـــوره لاليـــه د پښـــتون وژل اســـان دي مـــنم
ګرانــه پهانســي نــۀ ده چــې وي د کلبوشــن نــه بغېــر

مهجــوره عشــق دے چــې يــې وده څــه موســم نــه لــري
ګنــې هــېڅ بــوټے نــۀ ټــوکيږي د ســيزن نــه بغېــر

«««««»»»»

د خونـــدونو ډک وختونـــو تـــه دې خېـــر وي
ګرانــه يـــاره ســـتا يـــادونو تـــه دې خېـــر وي

د هجـــران چغـــې مـــې ړنګـــې پنګـــې يوســـې
پـــالو نـــارو ګړنکونـــو تـــه دې خېـــر وي

هـــيڅ اثـــر د يـــار پـــه کـــاڼي زړګـــي نـــۀ کـــا
د مـــلا ؤ تعويـــذونو تـــه دې خېـــر وي

مـــراد اونـــۀ شـــو اوس ټـــول پـــه کـــاڼو ولـــه
لېونيـــه زيـــارتونو تـــه دې خېـــر وي

زولنـــې پکښــې مـــزه د بنګـــړو کانـــدي
د پښـــتون دا مړونـــدونو تـــه دې خېـــر وي

هســې نــۀ چــې دې پــه لاره کښــې بــدل شــي
ســتا وعــدو او ســتا لوظونــو تــه دې خېــر وي

ټــول تــور مخــي او شــین ســترګي درتــه یــۀ شــو
پښــتنې ســیمې ســتا غرونــو تــه دې خېــر وي

چــې ســبب د پښــتنو د یــۀ کېــدو شــي
اے مهجــوره ســتا شــعرونو تــه دې خېــر وي

«««««»»»»

د ګـران ټکـي راوړل څـه مشـکل نـۀ دي پـه غـزل کښـې
خـو سـتونزې پېـدا کيـږي د پښـتون پـه پوهـول کښـې

اے ښـکليه يـاره سـتا د هـرې ښـکلې ادا ځـار شـم
خـو دا مـې نـۀ خوښـيږي د رقيـب سـره خنـدل کښـې

بـد مـه وايـه خپـل مشـر تـه د قـام تـر هغـې پـورې
تـر څـو چـې يـې اونـۀ وينـې د قـام پـه خرڅـؤل کښـې

څـه چـل چـې تـرې د څښـکلو د اوبـو نـه شـي ټانـک تـه
تـر هغـې بـې فائـدې دي زر ډبمونـه پـه ګومـل کښـې

خنـدا کلـه کـوې او کلـه ګـونځې تنـدے ګرځـې
د يـؤ نـه دې قربـان شـم خـو قيصـه ده پـه دا بـل کښـې

فقـط هـم د ماسـتو او د چـونې خبـره نـۀ ده
خـو بـل څـه وو باچـا د وخـت ليـدلي پـه ببربـل کښـې

رقيـب دلـه کـه نـۀ وے زمـا ښـکليه راتـه وايـه
مـانع دي درتـه څـه د خپـل مهجـور خـوا تـه راتلـل کښـې

«««« »»»»

جـــذبې مـــې ارادې مـــې ولـــولې مـــې شـــې ســـېوا
دا خیـــال چـــې زړهٔ تـــه راشـــي رادرومـــې بـــه تـــه بیـــا

کېـدے شـي چـې بیـا هـره ونـه شـنه د پښـتونخوا شـي
د چـــا د غـــاړې هـــار تـــه د ســـورګل پـــه تمنـــا

لګیـــا یُـــو نـــن خـــو زهٔ او تـــه آ خپلـــه خپلـــه وایـــو
خبـــر یـــې؟ چـــې بـــه څـــه وي د وختونـــو تقاضـــا

چـې جـوړ یـې پـه تـا نـهٔ کـړم د بابـا زنګینـې تـورې
حېـران یـم چـې بـه څنګـه وي تقـدیر د پښـتونخوا

وختونـو پـرې ثابتـه بـې غرضـي کـړه سـتا پـه خپلـه
مهجـــوره د کـــالونو راشـــه غـــواړي دې اشـــنا

«««««»»»»

يــا دې مشـــهور مـــونږه ښـــاغلي نـــهٔ وے
يـــا پـــه نـــاکړدو دې تـــا غلـــي نـــهٔ وے

آ د مـــزري څپلـــۍ ,,ځـــوت،، مـــو ښـــهٔ ؤ
چـــې مـــو بوټونـــه اغوســـتلي نـــهٔ وے

د خپـــل بيـــړي ټيپـــک پـــه خواکښـــې مـــړه وے
خـــو مـــونږ لـــه توپـــو تښـــتېدلي نـــهٔ وے

زړې جـــــــامې او دا زړه لوپټـــــــــه
خـــوريې خورځـــه خـــور مـــې ليـــدلي نـــهٔ وے

ظالمــــه دا تنکـــــي تنکـــــي ځلمــــي دې
کـــور لوبېـــدی جنـــګ تـــه لېږلـــي نـــهٔ وے

یـــا خـــو زمـــا وس وے د نویـــو جـــامو
یـــامې بچـــي راتـــه ژړلـــي نـــهٔ وے

تـــوره تیـــاره کښـــې پـــروت پـــه وینـــو ښـــهٔ ؤ
دا نمـــر ســـپوږمۍ دې راختلـــي نـــهٔ وے

اســـان کـــار نـــهٔ ؤ پـــه دښـــمن برلاســـے
کـــه لـــه خپـــل ســـر نـــه دې دانګلـــي نـــهٔ وے

دا د وخـــت ســـپي پښـــتانهٔ نـــهٔ شـــي خـــوړے
کـــه ســـپي دې خـــلاص کـــاني تړلـــي نـــهٔ وے

خنـــدا مهجـــوره! پـــس لـــه غـــم نـــهٔ راځـــي
غـــم نـــهٔ راتـــه کـــه دې خنـــدلي نـــهٔ وے

«««««»»»»

اوښــکې اوښــکې دي نعــرې دي نــور څــه نشـــته
د نصــیب نــه مــې ګیلــې دي نــور څــه نشـــته

پــه زړګــي کښــې مــې یــې تــهٔ د زړګــي ســره
ســـتا د حســـن افســـانې دي نـــور څـــه نشـــته

پـــه دنیـــا کـــه چرتـــه نـــوم د خوشـــحالو وي
ســـتا د ســـترګو مېخـــانې دي نـــور څـــه نشـــته

تصـــور د یـــو خیـــالي لېلـــیٰ مجنـــون هـــم
ترمطلبـــه یـــاراني دي نـــــور څـــــه نشـــــته

کـــه څـــوک پـــاڼې د مهجـــور د زړګـــي ګـــوري
د چـــا نخښـــې نښـــانې دي نـــور څـــه نشـــته

««««»»»»

21م اپرېل کال 1971م

راشـــه نظـــر نـــن د حـــالاتو پـــه کتـــاب کـــوو
زمـــا خـــواري او ســـتا د ظلـــم بـــه حســـاب کـــوو

جینـــۍ پـــه خپلـــه رضـــا لاړه د اشـــنا ســـره
ورونـــه یـــې وایـــي چـــې د پـــلار بـــه څـــه ځـــواب کـــوو

پـلار یـې وئیـل چـې خپـل صـورت خپلـه مرضـي د جینـۍ
ورونــه د خــور پــه طــرف وو دوئــي پــېچ و تــاب کــوو

خلـق یـې سـتا د شـونډو سـیال بـولي نـو ګـورو بـه یـې
بـــاغ تـــه بـــه ځـــو او ننـــداره بـــه د ګـــلاب کـــوو

چـــې داســـې اوتـــې بـــوتې وایـــي نـــو راځـــه خـــو کنـــه
څـــه انتظـــام بـــه د رقیـــب خانـــه خـــراب کـــوو

یـا خـو مهجـوره! ضـرورت د ے چـې ټـول یـؤ شـو سـره
یـا بـه تـور مخـي تـه ټـول عمرجـي ،،جنـاب ،، کـوو

«««««»»»»

اشنا چې ښکلے خدا ے پیدا کړې اوس خاني مهٔ کوه
مدام به نه وي ډېر غرور په دا ځواني مه کوه

د هر پښتون په غم ښادۍ کښې ځان شريک وګڼه
په ځان هيڅوک هم پوره نهٔ دے ځان ځاني مه کوه

يا خو د وخت د سامري د غوا بچے مه پرېږده
او يا ګيله په خپلو څنوهاروني مه کوه

چې روا بولې د ورور وينې تويول بې ګناه
د جنت تمه خو په دا مسلماني مه کوه

په زړهٔ باچا دے په ظاهره يې غلط چې نهٔ شې
خيال د مهجور په دا بې سرو ساماني مه کوه

«««««»»»»

چـــا واخســـتل خوندونـــه د يـــارانو د محفـــل نـــه
څـوک ځـان تـه ناسـت دي اوري د بلبـل قيصـې د ګـل نـه

څـوک کـور کښـې نامعلومـه ګـولۍ اوخـوري پـه سـر مـړ شـي
څـوک کـور تـه اسـماعيل غونـدې روغ راشـي د مقتـل نـه

زور ډېـر دے امريکـه کښـې ځکـه مـړه بـه افغانـان کـړي خـو
د روس غونـدې بـه درومـي ټيټـې سـترګې د کابـل نـه

دا يـــوه درســـره وليکـــه پـــه زړۀ زمـــا د لوريـــه
ســـنګر تـــه ځـــه پـــه نـــره څـــوک خبـــر دي د اجـــل نـــه

زغملـــې نـــۀ شـــو نـــوره دا ګرمـــي وزيرســـتانه
ســـړه هـــوا بـــه کلـــه پـــه مـــونږ لګـــي د پربغـــل نـــه

چې مړ يو امريکي کاندې بيا خبر که دے شهيد شي
ډېـــر لـــرې نـــه راغلـــې شـــابه اوزه لـــه بورجـــل نـــه

ډېـــر ډېـــر مـــې څـــوروي يـــوالې نشـــته پـــه پښـــتون کښـــې
مهجـــوره څـــه ســـبق بـــه دې څـــوک واخلـــي د غـــزل نـــه

«««« »»»»

يادګېرنـه : مـا دا غـزل پـه کـال 2009 م کښـې لـيکلې ؤ- کلـه چې پـه خوسـت کښـې د امريکـه د سـی،ائي، اے دا اوچتـې پـايې ووه(7) افسـران پـه يـؤ ځـايې پـه يـوه ورځ مـړه کـړے شـؤل پښـتنا ګـون پـه دې جنـګ کښـې تـر ټولـو لويې زيان ؤ-

کله د غم کله د ظلم لاثاني مشقینه
ډېر په خوشي مني دا زړۀ مې د لالي مشقینه

تو ته وو یودوي که نه قبد پکشې اتیا زره شوې
تورمخیه بیا دې دي پېل کړي بنګالي مشقینه

وسله دو ټوله تو په لوس کشې پشتین سیر په وینې
تور مخیه مۀ کوه نور دغه چنګیزي مشقینه

پاشتین چې ژاغ دې خپل حق کوو ورته غدار ویایي ته
په تورسری، د میژه مۀ کوه پوځي مشقینه

تــهٔ چــې پــه خپلــې غریبــونې تــل ظلمینــه کــوې
درتــه راو بــولي تــهٔ ویــا یــه کــیم مفتــي مشــقینه

زړهٔ مــې تــاڼو کې دای لــژ فکــر د زیــوتي ســره کــه
هــره تاڼو کــه بنــدې مــهٔ کــه د ازغــي مشــقینه

کلــه شــي مــوت روتــه ســبب دې بــې عزتــۍ وګرځــي
پــه سپینې لېچې کښې خو مهٔ که په بنګړي مشقینه

مېــدون د مینــې کشــې بــې خوفــه بــې خطــره ګرځــي
مهجــوره تــل کــوي بــې تېــرې ننګیــولي مشــقینه

«««« »»»»

د یؤ ورک غزل پاتې برخه

خبــــر یمــــــه بیـــــا زۀ زمــــا ژړا بــــــه ځنګـــــه وي
خـــــو وایـــــه ګلبدنــــــه ســــتا جفــــا بـــــه ځنګـــــه وي

لګیـــا یـــو نـــن خـــو زۀ او تـــه آ خپلـــه خپلـــه وایـــو
خبـــــر یـــــې! د وختونـــــو تقاضـــــا بـــــه ځنګـــــه وي

دا وریځــــې د آهونـــــو چـــې تـــرې پرخـــه راوریـــږي
خــو ښــکې کــه تــرې رلــی شــوله نــو دا بــه ځنګــه وي

مهجـوره د هجـران پـه سـرۀ غرمـه کښـې چې اونـۀ سـوې
پــه وخـــت کښـــې د وصـــال ســـبا بیګـــا بـــه ځنګـــه وي

«««««»»»»

چې په يوه خلۀ به افغانان شي نا هيڅ کله نا
چې به پوره زما ارمان شي نا هيڅ کله نا

فضا د بدر چې امت ځان کښې پيدا نۀ کړي څو
مدد راکوز به له اسمان شي نا هيڅ کله نا

رقيبه دا خيال دې چې بيا په زړۀ کښې هم تېرنۀ شي
دا چې به ستا زما جانان شي نا هيڅ کله نا

دا چا سپېرو سترګو خوړلے دے امکان ئے نشته
ودان به خړ وزيرستان شي نا هيڅ کله نا

اوس په ډنډر د ګل بلبله ته چغار مۀ کوه
چې به سمسور بيا ګلستان شي نا هيح کله نا

مهجوره! زړۀ چې پرې راتول شي داسې نشته دے څوک
مور نه بغېر که ډک جهان شي نا هيڅ کله نا

«««« »»»»

چې د راتلو يې ما سره کلکې وعدې کړې دي
دا يؤ څو شپې مې چا د پاره شوګيرې کړې دي

چا که خبرې بدنيتې ما ته ترخې کړې دي
خو ما تراوسه د هر چا سره خوږې کړې دي

د زړه کوټه ته مې وس نه وو د چاپېره دېوال
نو له ناکامه مې دغنو ترې وېړې کړې دي

په باغ کښې نشته دے په خاورو کښې ځلمي ګلونه
سترګے يم نن مې څو پېرې د هديرې کړې دي

يؤ جماعت راته پکار دے د پښتو د تبليغ
يؤ څو کسانو ارادې د سه روزې کړې دي

پښتو ساده پښتو سوچه پښتو اسانه ژبه
مهجوره! ماهم د څو ژبو مطالعې کړې دي

«««««»»»»

جذبې چې مېړنۍ وي په جذبو کارونه کيږي
د بڼه ګرېوان بې ستنې په ازغو کارونه کيږي

د ژوند دا خر ډګر شي د همت په يوم ګلونه
چې پښه شي کړي وده په خولو کارونه کيږي

زياتوب د علم غواړي نورې ژبې زده کړل هم
ليکو لولو او وايو په پښتو کارونه کېږي

لوے نيت لويه جذبه او حوصله چې پکښې راشي
د روغ صحت په توره د مودو کارونه کيږي

مـرګـے چـې مغـزے مـات کـړي نـو هـر څـه پـه تپـه اودريـږي
اشـــنا پـــه دے دنيـــا کښـــې د ژونـــدو کارونـــه کېـــږي

ځـــواني چـــې زړبـــوډي شـــي ارادې هـــم زړې کانـــدي
چـــې پېغلـــې ارادې وي د ځلمـــو کارونـــه کيـــږي

صـحت هـم تـل روغ نـۀ وي مـرګـے راشـي دولـت پـاتې
کـــه خانـــدو او کـــه ژاړو دا يـــۀ څـــو کارونـــه کيـــږي

بـس خپـر دے ايمـان غـواړه چاپېر چـل ګـوره مهجـوره!
ترخـــې مـــۀ وايـــه چاتـــه پـــه خـــوږو کارونـــه کيـــږي

««««»»»»

لـــه ســـترګو نــه د اوښــکو قطارونـــه دي وریـــږي
پــه غــم پســې بــل غــم د ے بــس غمونــه دي وریــږي

مـړه زمکـه پـرې ژونـدۍ شـي دا فرمـان د پـاک الله د ے
دا زېـــرے د ژونـــدون د ے بارانونـــه دي وریـــږي

لــه ســترګو اوښــکې څــاڅي کــه کوټــه د یــؤ غریــب ده
شــــپېو شــــپېو بــــاران د تـــا یادونـــه دي وریـــږي

زانګـو کښـې ماشـومان نـۀ کـوي خـوب پـه چغـو سـر دي
پـــه ټـــول افغانســـتان بانـــدې بمونـــه دي وریـــږي

پښـــتون دې خپـــل کتـــاب د عمـــل اولـــولي څـــه وائـــي
فرقـــې فرقـــې پښـــتون د ے عذابونـــه دي وریـــږي

زمـونږ نصـیب پـه سـمه کښـې سـکروټې او ګرمـۍ دي
پـــه غـــره زمـــونږ د ســـیمې بهارونـــه دي وریـــږي

پــه وران وزیرســـتان کښـــې لا پاســـته نـــوي ازغـــي دي
مهجـــوره! خلـــق وائـــي ســـره ګلونـــه دي وریـــږي

««««»»»»

بلبلــه وایــه تــه خفــه پــه غــم د ځــان یــې کــه نــه
او یـا پـه بـاغ کښـې خبـر شـوے لـه خـزان یې کـه نـه

لــه اوښــکو ډکــې ســترګې کرځــې څــه خبــره خــو ده
لــه بمبــارۍ خبــر پــه رنــګ وزیرســتان یــې کــه نــه

پــه هــر غــزل کښــې دې چــې ذکــر د ښــکلا کومــه
وایــه رقیــب تــهٔ چــې فقــط زمــا جانــان یــې کــه نــه

چــې ټولــه ورځ دې پــه پټــې کښــې مــزدوري کؤلــه
بیــا ټولــه شــپه یــې مجاهــد هغــه دهقــان یــې کــه نــه

چــې هــر ظــالم هــر زوراور پــرې طاقــت ؤازمایــه
روس شــو تکــړې اوس امریکــه هغــه افغــان یــې کــه نــه

مــــور د بمونــــو نــــه هــــم اونــــۀ ویرېــــدې ښــــاغلیه
ســتا پــه غېــرت شــه افــرین بهــادر ځــوان یــې کــه نــه

لــه غېرتــي خــاورې پېــدا یــې چــې ســنګر تــه درومــې
پــــه تمنــــا د شــــهادت تــــه ور روان یــــې کــــه نــــه

مهجــوره داســې شــعر لیکــه چــې پښــتون یــؤ شــي ســره
تــۀ پــه نفــاق د پښــتنو څــه پرېشــان یــې کــه نــه

««««»»»»

یادګېرنــه: دا غــزل مــا هغــه وخــت لــیکلی ؤ چــې امریکــې پــه افغانســتان بانــدې
د ,,بمونو مور ،،یؤ بم اچولی ؤ-

د غم تپوس يې مۀ کړه زيات يې خوند د بې غمۍ شي
چې سر شي په ګډا د چا په غم کښې لېونۍ شي

عاشق د عشق په سرکښې کلے کور د جانان غواړي
چې مينه لېونۍ شي کلے پرېږدي غرځنۍ شي

غوښتنه د خواهش بوډا له زړۀ نه اوس بهر کړه
چې لور يا د نمسۍ د پښتونخوا هره جينۍ شي

ترلې د تقوىٰ سره د دين دنيا هر څه دي
د يو درويش په وجه کور وړوکې کورنۍ شي

لمبه چې د ډيوې وي ترې ايرې پتنګان پروت وي
لوګے چې د زړګي وي خپل جانان ته سپېلنۍ شي

مهجوره! د هابيل او د قابيل قيصه شي جوړه
چې ورور د ورور په برخه کښېني جوړه تربګنۍ شي

«««««»»»»

چې کور کښې ډيوې مړې وي پتنګان کله راځي
غربت چې تر حد زيات شي نو ياران کله راځي

چې زړۀ له غمه شين شي نو له سترګو اوښکې څاڅي
په شين اسمان چې وريځ نۀ شي باران کله راځي

رقيب دله خفا کړو اوس جانان ته جرګې لېږم
د اوښکو بې جرګو خفا جانان کله راځي

د وخت په زولنو تړلي لاس کلک دي د هر شي
بې وخته بې نېټې سر ته ارمان کله راځي

وعتصمو بحبل الله خو ستا امر مني ټول
په يوه خلۀ مسلمان ستا په فرمان کله راځي

مهجوره! دا په وهم او په ګمان کښې د چا نۀ وه
چې خړ وخت به په ګل وزيرستان کله راځي

«««««»»»»

د ځیګر زخم چې زیات شي پرې دوا خو داسې نۀ وي
مصیبت کښې سترګې واړوي اشنا خو داسې نۀ وي

پنجابے چې ،،سر لښکر ،، ته بد رد وایي غدار نۀ دے
په ژړا پښتون غدار شي چې ژړا خو داسې نۀ وي

په خندا دې کافر وائي خپل کور سوزوه شاباش
*ستا په خله سوځي خپل کور پام کړه ملا خو داسې نۀ وي

چې په یؤ ګزار د بوټ یې ور زما د کوټې مات شو
سپاهي خندل چې وروي یاره بیا خو داسې نۀ وي

ماوئیل ګل وزیرستان مې لوټې لوټې شو مهجوره!
په خندا شو وې د ګل وطن ښکلا خو داسې نۀ وي

«««« »»»»

*دفرانس واقعې ته اشاره وي

مسېد وولـه لهجه

پښـــتانې خـــورې ډېـــر دې کشـــلي دي شـــنکي خولینـــه
پښـــتو تـــه کســـه بـــچ کـــوه خپـــل غېرتـــي خولینـــه

خیـــرن نطـــر ؤ ورتـــه کـــو ځونـــاور داســـې هـــن شـــته
پـــټ ســـوته مـــخ او پـــه چـــا مـــه وینـــه بېخـــي خولینـــه

چـــې دې خـــولې روشـــي پـــه مـــخ او بیـــا یـــې ووینځـــې تـــه
داســـې چړکیـــژي کـــه منـــې لکـــه غلمـــي خولینـــه

پـــرده کـــوه چـــې نـــن ســـابو داســـې وژ ســـترګي هـــن شـــته
چـــې حیـــا نـــۀ کـــو ځیـــر ځیـــر کســـې کشـــلاکي خولینـــه

داســـې جینکـــۍ هـــن پـــه اټـــک بنـــدې روپـــورې وتـــې
چـــې دې ځوانـــونې لامـــدورې تـــه ګرځـــوې خولینـــه

پښـــتانې نـــۀ دې اروېـــدلي مـــې پـــه خپـــل غوژینـــه
هغـــه ګلـــۍ پـــه ګلـــۍ ګرځـــي خرڅـــوي خولینـــه

چـــې د مېونـــد نقشـــه بدلـــه کـــو پـــه يـــوه ســـندره
ډېـــر نـــا يـــو دوه دا وي خـــو وي چـــې ملالـــي خولينـــه

د ســـاکه خـــور د ســـاکه ليـــر خولينـــه کســـه خېـــر دے
مهجـــوره! پـــام کـــه چـــې اونـــۀ کســـې پـــرادي خولينـــه

«««««»»»»

اګست کال 1998م

يادګېرنـه: د هـرې ژبـې پـه شـان چې پـه لويـو لويـو علاقـو کښـې وئيلـې کيـږي او دهـرې علاقـې خلق يـې مخصوصـه لهجـه کښـې وائـي پښـتو هـم يـوه داسـې ژبـه ده چـې تقريبـاً تقريبـاً پـه ټولـه پښـتونخوا کښـې وئيلـې کيـږي-خـو د لهجـو او الفـاظو د ادائيګـۍ پـه فـرق اوس د پښـتونخوا پـه دؤو غټـو برخـو کښـې وئيلـې کيـږي- نـو لـږ شـان د افسـوس خبـره دا ده چـې پـه شـمالي پښـتونخوا کښـې کومـه لهجـه پکـاريږي پـه هغـه د حنـوبي پښـتونخوا خلـق پـوهيږي خـو چـې کومـه لهجـه کښـې هـم دغـه پښـتو پـه جنـوبي پښـتونخوا کښـې (د کـرک نـه تـر ژوب بلوچسـتان) پـورې وئيـل کيـږي پـه هغـې بانـدې د شـمالي پښـتونخوا خلـق نـۀ خـو پـوهيږي او نـۀ پـرې د پوهېـدو کوشـش کـوي –نـو مـا ځينـې غـزل او نظمونـه پـه داجنـوبي پښـتونخوا کښـې د مسـيدو پـه لهجـه کښـې ليکلـي دي- چـې دلتـه ترينـه يـؤ غـزل رانقـل کـوم- اميـد لـرم چـې د شمال پښتونخوا ورونه به هم پرې پوېي شي-

## تېره ورځ ته

اے تېرې ورځې چې رڼا مې په وطن تېره شوې
د سپین سپېځلي رڼا نمر سره چې نن تېره شوې

لا دې سرخي د شفق شته په اننګو د اسمان
د ګران وطن په هر صحرا په هر چمن تېره شوې

چا په خندا په خوشحالو په چړچقو تېره کړې
او په چا سخته لکه وخت د زنګدن تېره شوې

درنه کوم یوځ څو پوښتنې د جهان په حقله
یوځ څو سوالونه د دې دهر د انسان په حقله

○

څومره دې وایه تماشې په دنیاګۍ ولېدې
غونډې دې څومره د مستۍ او خوشحالۍ ولېدې

په ټول عالم په هر طرف مسته مستي وه که نه
چرته له غربوه ډک زړګي کښې دې سلګۍ اولېدې

یا دې نظر ؤ په رېښمینو جامو پټ بدن ته ؟
که بڼه جامو کښې دې ښکاره د چا پنډۍ اولېدې

تا بس کتې ښکلې بنګلې او محلونه د چا !
که دې بې چته بې تنبې زړې کېږدۍ ولېدې

په عېش کدو د دې دنیا کښې زړبوډۍ وه اوده
که خړې پړې دې خولې ځوانۍ ولیدې

څومره ډاکې د چا په ننګ او په ناموس پرېوتې
څومره دې وایه د بې وسو مجبورۍ ولېدې

څومره حقونه شو تر پښو د غاصبانو لاندې
په ویر ژړا دې وایه څومره پابندۍ ولیدې

وايـــه زمـــا پښـــتنو ورونـــو پـــه خنـــدا تېـــره کـــړې؟
کـــه پـــه ژړا دې پښـــتنې پېغلـــې جينـــۍ ولېـــدې

اودې ليـــدې د لوپټـــو پيخـــې لونـــدې پـــه اوښـــکو؟
کـــه د ځوانـــانو دې کـــږې وږې پګـــړۍ وليـــدې

ورانـــه ويجـــاړه مـــې پراتـــه وه پښـــتونخوا هغســـې؟
کـــه دې پـــه کنـــدو پـــه لېـــړو کښـــې ابـــادۍ ولېـــدې

خـــوره وره پـــه محکـــومي رضـــا منـــدي وه کـــه نـــه؟
غلـــې خونـــدي دې ولـــولې د ازادۍ وليـــدې

وايـــه مهجـــوره! تـــه زمـــانې ســـره ديـــون د پـــاره
پکـــار دي څـــه د ژونـــد د نـــوي ســـباون د پـــاره

«««« »»»»

# زړه مې غواړي

دا چې اوسي د سرحد په تورو غرو کښې
دا چې پلار نیکه یې پروت دي په مورچو کښې
چې مړه ښکاري د ژوندیو په جامو کښې
زړۀ مې غواړي چې حساب وے په ژوندو کښې

دا فضا چې مې اهونه پکښې شوري
دا فضا چې لري ښکلي ښکلي ستوري
چې د شپې مې توره شپه د قسمت ګوري
زړۀ مې غواړي چې پراته مې وے په پښو کښې

چې سبب د یوۀ څو تنو د راحت وي
چې سبب د یوۀ څو تنو د عشرت وي
چې سبب د یوۀ څوتنو د خلوت وي
زړۀ مې غواړي زلزلې دا سې بنګلو کښې

چـــې وړوکـــې د عمــــل بلـــه ډیـــوه وي
چـــې یـــوه نـــوې عقیـــده او فلســـفه وي
چــې یــوه نــوې عجیبــه غونــدې تحفــه وي
زړۀ مــې غــواړي چــې مــې راوړے پــه پښتوکښــې

زړۀ مــې غــواړي د یــو بــل چــې ثنــګ پــه ثنــګ وے
زړۀ مـــې غـــواړي د باطـــل ســـره پـــه جنـــګ وے
مـــونږه ټـــول یـــۀ ځـــایې ولاړ پـــه نـــام او ننـــګ وے
زړۀ مـــې غـــواړي اتفـــاق پـــه پښـــتنو کښـــې

مهجـــور نیـــت لـــرم د داســـې نېکـــې چـــارې
چـــې لار ښـــود وي د عمـــل د نېغـــې لارې
چـــې رڼـــې شـــي پـــرې د غرونـــو پـــالې نـــارې
زړۀ مـــې غـــواړي یـــۀ شـــعور خپلـــو پـــردو کښـــې

«««« »»»»

## وختونه

کله کله مې یاديږي تېر وختونه
ښهٔ وختونه خو افسوس په شمېر وختونه

کله کله ازمري هم ګیدړان کړي
کله جوړ کړي د ګیدړ نه شېر وختونه

کله یؤ ساعت مخې شي د کالونو
کله جوړ د سترګو رپ شي ډېر وختونه

کله وخت د خوشحالو راشي مهجوره!
کله غواړي د وختونو خېر وختونه

«««« »»»»

# زه

ګرځمـــــه تـــــل د لېونوغونـــــدې زه
خپلــو تــه ښــکارم د پــردو غونــدې زه

ســـتغو د ژونــد تــه استقلال لرمــه
د پښــتونخوا د تــورو غــرو غونــدې زه

کلـــه فضـــا کښـــې اواره ګرځمــــه
مهجــور د چـــا د اســوېلو غونــدې زه

««««»»»»

# پوښتني

اے د موهومـــــو پوښـــــتنو بهيـــــره
اے د دلســــــوزو اســــوېلو بهيــــره
اے د ســــتومان انســــانيت قـــافلې!
او اے د تـــورو تـــورو شـــپو بهيـــره
شـــپه د مـــزل بـــه دې ســـبا کلـــه شـــي؟

○

څـــه خـــوے لـــرې هـــم د لـــوګي؟ لوګيـــه
اے د لوانـــده غونـــدې لړګـــي لوګيـــه
لـــوګے لـــوګے بـــه يـــې کـــه وريـــځ بـــه هـــم شـــې؟
اے دمظلـــوم د مـــات زړګـــي لوګيـــه
تاکښـــې بـــه تنـــدر او برېښـــنا کلـــه شـــي؟

باچـــا بـــې تاجـــه د وطـــن ســـتړے دے
دا پـــه خـــوارو زارو مـــین ســـتړے دے
راشـــئ اوګـــوئ کـــه رحـــم لـــرئ
خـولې خـولې دي ټـول کـوهکن سـتړے دے
مـــور د شـــیرینې بـــه رضـــا کلـــه شـــي؟

دا چـــې دي بنـــدې د ســـرکار لـــه وېـــرې
دا چـــې دي بنـــدې د خونخـــوار لـــه وېـــرې
لـــړه ښـــکاره شـــه نـــامعلومې نېټـــې!
دا بنـــدې خلـــې د اســـتعمار لـــه وېـــرې
چـې پـه خپـل حـق بـه دوي ګویـا کلـه شـي

چـــې د مظلـــوم شـــي ورځـــې شـــپې بـــدلې
چـــې د محکـــوم شـــي ورځـــې شـــپې بـــدلې
چـــې پـــاس تـــر عرشـــه دې فریـــاد اورســـي
چـــې د قـــوم شـــي ورځـــې شـــپې بـــدلې
مهجـــوره آه بـــه دې رســـا کلـــه شـــي؟

«««««»»»»

# اوس مه راځه لالیه

نهٔ یم خبر لالیه
د سترګو رپ شو هغه ټول وختونه
چې حوصلې پېغلې وې
چې ارادې ځوانې وې
نوې غوټۍ غوړېدې
او ولولې ځوانې وې
وخت ؤ تنکے او ارمانونه تنکي
د زړهٔ په کور کښې اوازې دې تا وې
نورې دنیا ته دروازې بندې وې

جوړې فقط وې ستا د پاره اشنا
استقبالي تنبې په سرو ګلونو
نورې هر چا ته دروازې بندې وې
تهٔ به راتلې په بخملينو لارو

○

اوس مهٔ راځه لالیه
چې بنديوان يمه زهٔ
په زولنو د سامراجي نظام مې
لاسونه بند په بند تړلي دي نن
سترګې مې سرې دې شونډې وچې ګرځم
په چغو چغو مې ژړلي دي نن

○

اوس مهٔ راځه لالیه
هيڅ نهٔ لرم خالي لاسونه ګرځم
تورو تيار کښې مړو ايرو ته ناست يم
نو په دې حال کښې به اونه کړے شم
چې د دې خپلې بېوسۍ په حال کښې
چې د دې خپلې غريبۍ په حال کښې
چې د دې خپلې مجبورۍ په حال کښې
تا هم بېوسه او مجبوره وينم

○

اوس مۀ راځه لالیه

دلته اوس ټوله بې قدري پراته ده

دلته اوس ټوله مجبوري پراته ده

چې تا مجبوره او بې قدره وینم

زما غېرت زما انا نۀ زغمي

اوس مۀ راځه لالیه

اوس مۀ راځه لالیه

««««»»»»

ټانک کالج 1968م

## د پرېغل په تناظر کښې جنوبي وزیرستان ته

چې مې باز د فکر والوت کوز له زمکې نه اسمان ته
د پرېغل په څوکه ناست یم ګورم ګران وزیرستان ته
وینم هره خوا ته ګورم پېوندہ، موسیٰ، روښان ته
او دعا له خدایه غواړم سوال کومه زۀ سبحان ته

لویه خدایه په دا سیمه داسې نر ژړې پېدا کړه
چې راغوندہ په یو والي ارته ببرته پښتونخوا کړه

اے زما د زړګي سره اے له ځانه په ما ګرانه
اے زما د ډېرو ښکلیو روایاتو نګهبانه
اے د کندولیړو زمکې اے عجیبه کوهستانه
چې پرېغل دې هما له دے اے زما وزیرستانه

اے مسکنه د غازیانو اے مورچې د باتورانو
اے زما غېرتي خاورې اے میراثه د نیکانو
چې پېرزو یې په مونږ نۀ شې د یو والي وروولی هم

وې خفــا پـــه زړهٔ دننـــه د پښـــتون پـــه خوشـــحالۍ هـــم
نـهٔ وې خـوښ چـې د پښـتون هـم د سـيالانو پـه سـيالۍ هـم
ســـموو بـــه دا بـــد بختـــه هـــم پـــه تـــوره پـــه ګـــولۍ هـــم

چـې مـې ګرانـې پښـتونخوا تـه پـرې پـه بـد نظـر کاتـه شـي
*،،هغـه سـترګې شـه لېچنـې هغـه کسـي دې ړانـده شـي،،

وختــي مــاتې پــه هــر چــا راځــي خفــا چــې ورتــه نــهٔ شــې
پــه مــا ګرانــه ماتــه هغــه وې چــې مــات ورتــه پــه زړهٔ شــې
داسـې وخـت بـه هـم راځـي چـې بـه د خپلـو خلقـو تـهٔ شـې
خـدا ے دې نـهٔ کـړي د تورمخيـو سـره هـم چـې تـهٔ سپېره شـې

لــه سـړې هــوا دې ځــار شــم ســتا قربــان لــه ســردرو شـم
قربــانې غــواړي لــه خپلــو هســې نــه چــې د پــردو شــم

لـور پـه لـور پکښـې ويشـتل چـې ميـان ښـکارزن غرځنـې بزونـه
زړهٔ دړديـــږي مـــې چـــې ويـــنم لغـــړ ســـري هغـــه غرونـــه
چرتـــه ټـــول شـــو کـــاترې چرتـــه وېشـــې ځنګلونـــه
پـــه اور اوســـوځه کـــه راغلـــل زمـــونږ حبيـــب تـــه پرمتونـــه

نــو اوس اے ګرانــه پربغلــه شــابه تــهٔ اتــش فشــان شــه
شــغلې اوباســه دخلــې نــه پــه دې خلقــو قهرمــان شــه
دا مـــنم چـــې هغـــه خـــوار وو وربي تـــربي او نهـــر وو
دا مـــنم چـــې نـــهٔ کـــلا وه نـــهٔ لـــونګۍ وه ســـر ببـــر وو
دا مـنم چـې پیسـې نـه وې اونـهٔ دومـره سـره سـپین زر وو
خـــو ســـاده بـــاده ژونـــدون ؤ د یـــؤ بـــل پـــه غـــم خبـــر وو

چـې جامـه یـې هـم شـړې وه چـې بړسـتن یـې هـم شـړې وه
چـــې بـــه ځـــار تـــرازادۍ شـــو نـــو کفـــن یـــې هـــم شـــړې وه

پـــوی پـــه خونـــد د ازادۍ وو وینـــه ګرمـــه پـــه بـــدن کښـــې
وئیـــل داســـې یـــؤ شـــهید د ،،تـــاراکۍ،، پـــه زنکـــدن کښـــې
مـــونږه نـــهٔ کـــوو د غیـــرو غلامـــي پـــه خپـــل وطـــن کښـــې
دا دې پتـــه وي انګریـــزه ســـتا راتـــې تـــه پـــه لنـــدن کښـــې

اے زمـــا وزیرســـتانه تـــهٔ د داســـې خلقـــو کـــور یـــې
ســـتاله خـــاورو صـــدقه شـــم د زړهٔ ســـر تـــهٔ د مهجـــور یـــې

«««««»»»»

*دا مصرعه د اجمل خټک صیب ده

## جنوبي وزيرستان ته دعا او خواستونه

سوچ مې يوسي سمدستي ځمه له زمکې نه اسمان ته
د پرېغل په څوکه کښېنم ګورم ګران وزيرستان ته
وينم هره خوا ته ګورم پېونده ،موسىٰ ، روښان ته
او دعا له خدايه غواړم سوال کومه زه سبحان ته

په دا سيمه کښې دې خدايه داسې نرژنې پېدا شي
چې راويښې او بېدارې ولولې د پېونده شي

داسې نر چې په دا سيمه هر بد کار ترېنه ترسيږي
هر دښمن د ازادۍ او هرمکار ترينه ترسيږي
لېونے د ازادۍ چې هوښيار ترينه ترسيږي
يؤ لمسے د پېونده چې استعمار ترينه ترسيږي

شي ګمان مې د سکروټو په ظاهره مړو ايرو کښې
زۀ چې ګرځم د غازيانو رنګو پنګو هديرو کښې

وايم ګران وزستان مې د پښتو نه خالي نۀ دے
دا ګلشن د ازادۍ مې دغنچو نه خالي نۀ دے

استعمار ته دا وطن لا د خطرو نه خالي نۀ دے
وایم کور د پېوند ه خو د زلمو نه خالي نۀ دے

هر دښمن چې مې دې سیمې ته په برندو سترګو ګوري
مونږ ویستے شو هغه سترګې خبرداره دې بیا شوري

دا تش غرونه غرونه نۀ دي دلته پټه یوه جذبه ده
دا جذبه د ازادۍ مې دنیکانو یوه ورثه ده
هره لاره استعمار ته چې پرې ځي ګرېه وړه ده
څو څو ځله د ظالم له دې ځاے تللې جنازه ده

اوس دې نۀ ګوري دې خوا ته هر په زړۀ خیرن ته وایم
خارښتیږي چې پرېغل ته هر هغه پمن ته وایم

زۀ د ګران وزیرستان تعلیم یافته ورونو ته وایم
په ښائست د نور د علم ښائسته ورونو ته وایم
زۀ د مینې محبت په واسطه ورونو ته وایم
چې څه دړد لري په زړۀ کښې زه هغه ورونو ته وایم

چـې د خپلـې علاقـې نـه زمـا ورونـړو بوسـتان جـوړ کړئ
دلتــه امــن امــان جــوړ کــړئ دلتــه امــن امــان جــوړ کــړئ

خــو مهجــوره ښــکلے بــاغ وزیرســتان هلــه کېــد ے شــي
د دې سـيمې د رنځونــو بــس درمــان هلــه کېــد ے شــي
دا د غرونــو اوســېدونکے ښـــۀ انســان هلــه کېــد ے شــي
زمــا ورونــړو دلتــــه امــن و امــــان هلــه کېــد ے شــي

چـې دګـران وزیرسـتان مـې هـر بچـے تعلـیم یافتـه شـي
هـر بـوډا تعلـیم یافتـه شـي هـر ځلمـے تعلـیم یافتـه شـي

«««««»»»»»
یادګېرنـه: مـا دا دوه نظمونـه د وزیـر سـتان د موجـوده حالـت نـه ډېـر کالونـه وړانـدې لیکلـي دي- ځکـه د وزیرسـتان د اوسـني حالـت نـه مختلـف پـس منظـر کښـې لیـد ے شـي-دې کښـې د ځینـو بنـدونو ټکـي هـم یـؤ رنـګ دي- هغـه و خـت بـه دا د بزو ،مېـږو ،او غواګـانو غلـې کېـدې- او ډېـرو بدمعاشـانو پـه دې خلقـو نـه ډاټسـن ګـاډي بوتلـل- او اوبـه یـې تښـتول- د ویـونکي دي دا نظمونه د هغه وخت په تناظر کښې ګوی، ووائی-
یادګېرنـه: دا دواړه نظمونـه مـا پـه کـال 1997م کښـې پـه ډي ائـي خـان کښـې د فقیر ایپي په کانفرانس کښې وار په وار وئیلي وو-

# د ازادۍ په ورځ

د ځوارلسم اګست د نمر د راختو نه مخکښې
سحر وختي له کلي اووتم بېديا ته لاړم
د ښکلي نمر د ازادۍ د مبارکې ورځې
د پلوشو په استقبال ګوشے يو خوا ته لاړم

بهر له کلي نه خو ډېر له کلي لرې هم نۀ
په يوه جونګړه مې په لاره کښې نظر لګېدو
ناسته په وره کښې د جونګړې مې بوډۍ اوليده
ماته ملا سپين يې د وړۍ په شانې سر لګېدو

دې هم کتل په نمر خاته خو چې يې زۀ اوليدم
وې د اګست خو زويه نن ده ځوارلسمه کنه
دا نن سحر د ګران وطن د ازادۍ سحر دے
ما وې چې هو ګرانې ابۍ دا خو منمه کنه

دا راته وايه چې دا تۀ دلته تنها ولې يې
جدا له خلقو نه پراته تۀ په بېديا ولې يې

چې رپېدونکے لاس دې اونيسي او پاڅوي دې
داسې څوک شته که نا تۀ ناسته ماته ملا ولې ئے

ابۍ يۀ سوړ اسوېلے اوکړو ويې چې هو بچيه
زۀ تنها نۀ يم زما ډېر ښکلےيۀ ځوان بچےۀ
د ګران وطن د ازادۍ جنګ ته مې اولېږلو
لا خوراغلےنۀ دے ښۀ مرد مېدان بچے وو

خو داسې اورمه له خلقو چې شهيد شو هغه
زما پتنګ کړو ځان ستي د ازادۍ په شمع
وائي چې مړه شي نو هغه په دنيا بيا نۀ راځي
ورکړے سر زما بچي د ازادۍ په شمع

خو نا دا ټول دي په غلطه شهيدان خو نۀ مري
د ازادۍ په شمع سوي پتنګان خو نۀ مري
نن خوارلسمه د اګست ده زۀ کمخۍ غوړوم
د ازادۍ جنګ ته وتلي باتوران خو نۀ مري

زمــا يقــين دے چــې راځــي بــه نــن سـبا بــه راځــي
د ازادۍ ببــرغ پـــه لاس کښـــې پـــه ګـــډا بـــه راځـــي
نـــن څوارلســـمه د اګســـت ده پـــه خنـــدا بـــه راځـــي
نـــن بـــه راځـــي نـــن بـــه راځـــي او خامخـــا بـــه راځـــي

نـــو راشـــئ ورونـــو چـــې لــږ ســوچ اوکـــړو او فکـــر وکـــړو
د ازادۍ پـــه ورځ بـــه ډېـــرې خوشـــحالۍ هـــم کـــوو
خــو څــه خــو بــه خيــال د مــور او پــلار د شــهيدانو ســاتو
څـــه خـــو بـــه خيـــال د ننګيـــالي د دې ابـــۍ هـــم کـــوو

د ګـــران وطـــن د ازادۍ خـــو ډېـــر کالونـــه اوشـــو
خـــو لا خـــو لارې د زامنـــو ګـــورې بـــورې مينـــدې
پـــه انتظـــار د خپـــل شـــهيد دا يـــوه ابـــۍ هـــم نـــۀ ده
مهجـوره وې بـه ګـران وطـن کښـې داسـې نـورې مينـدې

«««««»»»»

يادګېرنـه: مـا د نظـم پـه څوارلسـم اګسـت کـال 1964 م کښـې لـيکلےؤ- چـې زۀ پـه ګورنمـټ مـډل اسـکول کړمـه کښـې د اتـم ټـولګې طالـب علـم ووم-او د ازادۍ د بـاتورانو ډېـرې مينـدې ژونـدۍ وې-د دې نظـم معيـار د اتـم ټـولګې د يؤ هلک د ليک په تناظر کښې وګورۍ-

# بلنه

اے خوارانـــو غریبـــانو راشـــئ راشـــئ
اے بـــې کســـو مظلومـــانو راشـــئ راشـــئ

چـــې مـــانۍ د اســـتبداد کـــړو دړې وړې
رانســـکورې چـــې بنګلـــې کـــړو لـــوړې لـــوړې
ورتـــه اور کـــړو چـــې تـــرې پورتـــه شـــي لـــوخړې
چـــې بنګلـــې شـــي د خانـــانو خـــړې پـــړې

اے خوارانـــو غریبـــانو راشـــئ راشـــئ
اے بـــې کســـو مظلومـــان راشـــئ راشـــئ

نـــن دخپلـــو عشـــرتونو حســـاب ورکـــړئ
نـــن دخپلـــو دولتونـــو حســـاب ورکـــړئ
د مـــزو او د خونـــدونو حســـاب ورکـــړئ
د دې لویـــو محلونـــو حســـاب ورکـــړئ
اےخانـــانو نوابـــانو راشـــئ راشـــئ

نــن قیمــت د خپلــو تویــو خولــو غــواړي
نــهٔ شــرمیږي لــه هیچــا نــهٔ چاتــه ژاړي
حــق بــې حقــه مــو حقونــه چــې څــوک داړي
ورپســې شــئ راشــئ ټــول لکــه غوبــاړي
خــړو پــړو مزدورانــو راشــئ راشــئ

ولــې غلــي د غریــب پــه بــد حــالې یــې
ولــې خــوښ پــه دابــې خونــده زنــدګۍ یــې
د اســلام پــه تلــه خامخــا تلــې یــې
حــق تــه حــق وائــي ښــکاره بیــانوې یــې
امامــانو خطیبــانو راشــئ راشــئ

د ســرو شــونډو لــه شــرابو لاس پــه ســر شــئ
لــه تیــارو د تــورو زلفــو رابهــر شــئ
کــار پــه تشــه وینــا نــهٔ کیــږي خبــر شــئ
عمــل وکــړئ د غریــب پــه چــارو ورشــئ
شــاعرانو ادیبــانو راشــئ راشــئ

ترينه کار د تورو واخلۍ خبردار شئ
بند ترلي مخامخ د استعمار شئ
ټول په نبغه لاره واړوئ په لار شئ
خالي مه کښېنئ اخته د قام په کار شئ
د وطن قلمکارانو راشئ راشئ

ټول به ځار په ننګ غېرت او په پښتو شو
دا پرې جنبې به پرېږدو ټول به يو شو
که يو نۀ شو نو دا ټول به هم يو څو شو
په درياب د بې ننګۍ کښې به لاهو شو
زما ورونو عزيزانو راشئ راشئ

«««««»»»»

## راشه

راشــــه چـــې بــاغ د زنــدګۍ تــه بهارونـــه راشـــي
راشــه چـــې غــاړې د ځوانۍ تـــه دې هارونـــه ر اشـــي
راشـه چـې تـورې تیـارې شـپې د جـدایۍ شـي ختمـې
راشــه چـې ختمـې بـې کـارۍ شـي او کارونـه راشـي

کــور د زړۀ وران دے رښــا نشــته مــړې ایــرې دي اشـــنا
د هجـران شـپې ډېـرې اوږدې ډېـرې سـپېرې دي اشـنا
زړۀ د ماشـوم غونـدې ژړیـږي سـترګې سـرې دي اشـنا
زر کـړه راځـه چـې مـې زړګـي تـه قرارونـه راشـي
د یــؤ عاشـــق د ګرمـــو اســـوېلو پـــه خــاطر

د يـــؤ مـــين د جـــدايۍ نـــه د ګيلـــو پـــه خـــاطر
پورتــه کــړه جــام دې د ديــدن د مېلمــانو پــه خــاطر
چـــې د خنـــدا د عاشـــقانو هـــم وارونـــه راشـــي

دا بـــې قيمتـــه چـــې دي نـــن د غريبـــانو خـــولې
دلتـــه بـــې قـــدره دي زمـــا د مزدورانـــو خـــولې
خـواره خـوارۍ کښـې مـې بهيـږي د خوارانـو خـولې
وختـه راځـه چـې پـه بـادارو يـې پورونـه راشـي

چـې بـده ورځ شـي د پښـتون پـه دښـمنانو بانـدې
چـې زنکـدن شـي د پښـتون پـه بـد خواهـانو بانـدې
چـې ورځ د عيـد شـي پـه خوارانـو غريبـانو بانـدې
پـرې خوشـحالۍ دلـۍ دلـۍ او انبارونـه راشـي

زړې قيصـې چـې د لېلـىٰ او د مجنـون تـازه شـي
خونـد د وصـال سـره غمونـه د بيلتـون تـازه شـي
چـې ولـولې د عاشـقانو د ژونـدون تـازه شـي
بيـا منصـورانو تـه د مينـې چـې دارونـه راشـي

چې دا بې خونده ورځې شپې د زندګۍ شي ختم
چې دا په ژبه او قلم دي پابندۍ شي ختم
چې دا جېلونه زنځیرونه هتکړۍ شي ختم
په ازادۍ چې د بلبلو چغارونه راشي

د خوشحالۍ ورځې به کله وي خبر نۀ یمه
د سوکالۍ ورځې به کله وي خبر نۀ یمه
چې د سیالۍ ورځې به کله وي خبر نۀ یمه
مهجور خبر کړه چې د ژوند اعتبارونه راشي
راشه چې باغ د زندګۍ ته بهارونه راشي

«««««»»»»

# راپک

یوه ورځ د اوړي په غرمه کښې په سکڼې غرمه کښې
کورته راتلمه وم راوړے مجبورئ غرمه کښې
د اور لمبه وه لګېده په مخ سیلئ غرمه کښې
خولې خولې وې خوټکېدلې ککرئ غرمه کښې

چې په جنډوله اودرېدو بس د پاټک په خوا کښې
ولاړ په نمر ؤ زمونږ بس سره راپک په خوا کښې

ګرمئ اخستے ؤ خولې ؤ سیلېدلو سره
بس ته راوختو د بس د اودرېدلو سره
او مونږ سوارلئ چې په سیټونو سمېدلو سره
دے ؤ ولاړ چیرړې جامې یو څو کمبلو سره

وې چې سخیانو ته د خیر وې ستړي مه شئ وروڼو
هر څه دې ستاسو کره ډېر وي ستړي مه شئ وروڼو

څوک یوه روپئ او څوک انه او څوک پېسه ورکوي
هر سړے ده ته بس د پاره د الله ورکوي

څوک اوازې ورته د معاف که معاف اې تره ورکوي
څوک ورته وائي لاره پرېږده څوک دیکه ورکوي

زۀ په سیټ ناست یم د قدرت په قدرتونو کښې غرق
دا د نصیب رنګا رنګې ته په سوچونو کښې غرق

وایم چې دغه وړې تږې ځوان به ورور وي د چا
وایم چې ده کره به ناسته لور او خور وي دچا
دا غریبي د ده به هم چرته پېغور وي دچا
خدایه د ده په غریبۍ کښې به قصور وي د چا

د پلار نیکه ځینې که خدایه څوک خانان کېدے شي
نو دا خولې خولې راپک هم راپاخان کېدے شي

په بدرګه په چا د چا سره ټوپک کرځوي
په هله ځله هر بوډا ، ځلمے هلک ګرځوي
چې وي ماړه نو بیا مازغه پاس په فلک ګرځوي
چې شي خالي نو کور په کور خېټه راپک ګرځوي

په هر موټر هره لارۍ کښې ما او تاته ګوري
د ازلي برخې په تمه دے هر چا ته ګوري

څوک وي خانان د چا په برخه مزدوري وي د چا
د بل په مخکښې لاس نیول به مجبوري وي د چا
لکه راپک ورپسې منډې ضروري وي د چا
په زر جېبونو کښې تقسیم خدایه روزي وي د چا

د چا خندا ځان پورې نۀ غواړي قسم دے وروره
مهجوره! زړۀ لري د غوښې بنیادم دے وروره

«««« »»»»

یادګېرنه: راپک زمونږ د علاقې یؤ ملنګ او غریب سړے ؤ-دے به اکثر هره ورځ جنډوله ته راتلو- اول به یې په بس او لارۍ کښې ناستو خلقو ته سترې مۀ شې اوکړل- او بیا به یې اووئیل چې سخیانو ته دې خېر وي-د ملنګ برخه اوکړۍ- وائي چې په غوا کښې که پۍ نۀ وي هم خو د ,,بورکي،، ورته هیله وي- ما دا نظم د دغه ملنګ راپک په نوم لیکلے دے-

# زخمي ګوته

دا نـــــن قیصـــــه چـــې زهٔ لیکمـــــه حقیقـــت لیکمـــــه
د یـــو غریـــب نـــوکر د خـــوږ ګـــوتې حالـــت لیکمـــــه

ده زخمـــــي کـــړې خپلـــه ګوتـــــه د ســـبزۍ ســـره ده
نـــورو تـــه بیـــا هـــم جـــوړوي دی ترکـــاري لګیـــا دے
جـــوړه یـــې کـــړې ښـــهٔ دخپلـــې غریبـــۍ ســـره ده
څنګـــه چـــې دي خـــو د ژونـــد ورځـــې تېـــروي لګیـــا دے
څـــه نـــا اشـــنا یـــې دغـــه ګوتـــه د پټـــۍ ســـره ده
ځکـــه بـــې غمـــه تـــرې ســـرې وینـــې تویـــوي لګیـــا دے
جـــوړې پـــه زړهٔ کښـــې څـــه بـــدل لـــه دې ســـماجه اخلـــي
ځکـــه هـــر څـــه پـــه خپلـــو ســـرو وینـــو لـــړي لګیـــا دے

څـوک بـه مـې ګـرم بـولي خـو سـتا پـه دې سـرو وینـو قسـم
چـــې زهٔ دا هـــر څـــه چـــې لـــیکم د زړهٔ لـــه کـــومي لـــیکم

وایم چې څوک به ستا په وینو کړي دوې اوښکې تویې
وایم چې څوک به د عبرت پکښې څه مومي لیکم
وایم خولو سره به خورو چې د غریب خولې دي
خبر دے روټی، که څه بې خونده څه بد رنګه وخورو
خو اخر مونږ هم انسانان یو اے د زړۀ سلطانه
ستا په سرو وینو باندې سره چپاتې څنګه وخورو

زۀ سوچ کومه چې مهجوره! په دا ګران وطن کښې
وي به ټیکلې نن د ډېرو مزدورانو ګوتې
سلطانه ډېر دي ستا ملګري چې بې چروته نۀ شي
په وینو سرې به وې د ډېرو سلطانانو ګوتې

«««««»»»»

یادګېرنه: زمونږ یو لنګري ؤ- هغه د سبزۍ سره خپله ګوته غوڅه کړې وه –د ده نوم ,,سلطان،، ؤ- ما دا نظم د ده د زخمي ګوتې تر اثر لاندې لیکلے دے-

## څوک دے؟

ژوندہ ! ستا د کشمکش په مرحلو کښې
په اوږدو لارو روانو قافلو کښې
چې آه نۀ کوي او پښې ابلې روان دے
د منزل په اسره درومي په ازغو کښې
د غيرت همت نه ډک دا سړے څوک دے؟

د ارام په ښاپيريو مين نۀ دے
د نشو په اور انګار لوغړن نۀ دے
چې يې بار د بل غمونه هم په سر دي
چې په وچه زمکه بار د وطن نۀ دے
د خولو په سمندر کښې مهے څوک دے؟

امارت دے منتظر د چا خولو ته؟
رڼا ورځ ګوري د چا و تورو شپو ته؟

هغه څوک دے چې يې پرورې په قسمت دي؟
هغه څوک دی چې دانې يې کړې ترڅو ته
د وطن په شنو فصلونو رېلۍ څوک دے؟

زۀ مهجور يمه خبر له خپل قانونه
د خوږې ليلیٰ خبر يم له مجنونه
د ريا په جامو کله نۀ تېروزم
راته نۀ به ښايې نخښې له پښتونه
ماته مۀ وايه چې خپل او پردے څوک دے

«««««»»»»

يادګېرنه: زما دا نظم په روزنامه شهباز سمتبر کال 1970م کښې چاپ شوے ؤ-

## د کاروان منځې په سر

روان موټر کښې د کاروان منځې په سر ومه زۀ
رو غونډې ماته مې زړګي لکه د چا ووئیل
،،وکړه عظمت ته د وطن د مزدورانو سلام،،
خولې خولې شومه ملګري ته مې دا ووئیل

تۀ د تک تور هوار سړک خوندونه اخله دورمه
ما دلته پرېږده چې د چا تويې خولې اوګورم
،،په اسوېلو د چا تنهاکې زۀ تبل غواړم
زۀ به د چا د لاس پټوکي دلته پرې اوګورم،،

چې د کاروان منځې په کلکه او ببره سینه
د تور ښامار غونډې تاويږي راتاويږي غونډې
د دې سړک په غاړه ناست يمه سوچونه کوم
خوارۍ ځارۍ د غريبانو راياديږي غونډې

وايــم چـــې دلتـــه چـــې تېريـــږي د مـــوټر مالکـــه
درتـــه د چـــاتيکلې ګـــوتې هـــم يـــاديږي کلـــه؟
دلتــه وزګــار شــو ســړک جــوړ شــو خــو نــه دے غريــب دے
چرتــه بــل ځــايې کښــې بــه لګيــا وي وزګــاريږي کلــه

چې پــه کلــک غــره کښـې ســتا مــوټر لارۍ تــه لار جــوړوي
وايـــه اشـــنا د فرهـــادي همـــت خښـــتن څـــوک دے؟
هــوار ســړک چــې پــرې تــک تــور او هــم صــفا جــوړ شــو
پـــه دې تـــودو تـــارکولو ســـوے لـــوغړن څـــوک دے؟

وايـــه چـــې لاړو پيـــاده ســـتړے ســـتومان ؤ کورتـــه
ســتا عــېش کــدو تــه يــې لنــډ کــړے اســان کــړے مــزل
ټيکلـــې ګـــوتې او مـــلا ماتـــه ټولـــه ورځ ؤ لګيـــا
د ټـــولې ورځ د محنـــت دې څـــومره ورکـــړو بـــدل؟
بـــس دومـــره څـــه چـــې وږي تـــږي او نهـــر بچـــي يـــې
ډوډۍ د يـــؤ وختـــي خـــو اومـــومي او نـــۀ وي د بـــل
نـــو دا غريـــب بـــه وي لګيـــا ســـبا بـــه بيـــا رادرومـــي
وي بـــه لګيـــا او جـــوړوي بـــه دې شـــاندار محـــل
اوس راتـــه وايـــه چـــې پـــه حـــال د دې غريـــب اولـــيکم

او کــه نغمـــې اولـــيکم اوســـتايمه پـــه زلفـــې ول ول
اوس هـــم صـــفت د چـــا د شـــونډو او رخســـاراوليکم؟
اوس دې هـــم خيـــال د ے ســـتمګره چـــې بـــه لـــيکم غـــزل؟

نـــا کلـــه نـــا اوس بـــه قيصـــې ســـتا د ظلمونـــو لـــيکم
اوس بـــه ســـامان ســـتا د ژړا وي خنـــدوم بـــه دې نـــا
اوس بـــه زمـــا د قلـــم ژبـــه وي او ســـتا ظلمونـــه
اوس بـــه د يـــو يـــو بـــدل اخلمـــه پرېـــږدم بـــه دې نـــا

مهجـــور غمجـــن غونـــدې راپاڅېدمـــه راغلمـــه خـــو
مـــا پـــه خولـــو چـــې بـــې قيمتـــه وي قســـم کـــړے د ے
هـــر جـــاګير دار ســـرمايه دار تـــه بـــه پـــه ډاګـــه وايـــم
چـــې د وطـــن پـــه غريبـــانو دې ســـتم کـــړے د ے

«««««»»»»

# د ليوني په مرګ

خلقــو لــږ مــا خــو هــم خبــر کــړی دا غوغــا د څــه ده
ماتـــه هـــم ووايـــئ قيصـــه دا نـــن ســـبا د څـــه ده
څـــه د حســـرت او څـــه د غـــم ډکـــه فضـــا د څـــه ده
ماتـــه هـــم وايـــئ زړۀ مـــې چـــوي دا ژړا د څـــه ده

دا څــوک چــې کلــي تــه او څــوک ؤ هــديرې تــه ځغلــي
ښــکاري خــو داســې څــوک مــړ شــوے د ے زمــونږ د کلــي

دومــره پــوهېږم چــې د کلــي څــوک ســړے مــړ شــو
يـــا بـــه هلـــک ؤ يـــا بـــوډا او يـــا زلمـــے مـــړ شـــو
د چـــا عزيـــز ؤ د چـــا خپـــل د چـــا پـــرد ے مـــړ شـــو
خـــو دا ماشـــوم وايـــې د کلـــي لېـــونے مـــړ شـــو

ســـترګې مـــې ســـرې دي ژړوي مـــې نـــن پـــردي غمونـــه
وايـــــي رښـــــتيا د لېونـــــو وي لېـــــوني غمونـــــه

خـــدايګو کـــه نـــن زمـــونږ د کلـــي مشـــر خـــان مـــړ وے
هغـــه چـــې ځـــان بـــولي د کلـــي نګهبـــان مـــړ وے

هغه مالک زمونږ د ګټې او تاوان مړ وے
هغه څښتن د ښې حجرې او لوے مکان مړ وے

نو مابه نۀ ؤ دا دومره په مرګي ژړلي
څومره چې نن مې دي په مرګ د لېوني ژړلي

تۀ چې کاواکه بې خبره په کوڅو ګرځېدې
په رڼا ورځ هم ګرځېدې په تورو شپو ګرځېدې
په سر سرتوره ګرځېدې په ابلو پښو ګرځېدې
څوچې ژوندے وې واک دې خپل وو بې جامو ګرځېدې

اوس یې مړ شوے نو په خوښه د ژوندو کښې به ځې
اوس تورو خاورو ته چې ځې سپینو جامو کښې به ځې

د هر ماشوم د لاسه کاڼي تا په سر زغملي
تا د ځوانانو ګزارونه په ټټر زغملي
تا د هر چا د لاسه هر څه لکه نر زغملي
مرهم د مالګې دي د تا پرهر پرهر زغملي

نن لیونیه ځکه ټول راغونډ و مه کلے
ستا په مرګي په چغو چغو ژړومه کلے

تانــه پوښــتنه چــا ونــهٔ کــړه چــې پــه زړهٔ دې څــهٔ دي
څـوک پوهـه نـهٔ شـو پـه هغـه هم چې پـه خلـه دې څـهٔ دي
هرچــا تــه بــد وې چــا ونــهٔ کتــل چــې ښــهٔ دې څــهٔ دي
لېــونۍ ســترګې دې څــه وايــې پــه بانــه دې څــهٔ دي

لاړې زمــونږ د دنیــا ګــۍ نــه ګیلــه مــن لاړې تــه
غمجــن د ے څکــه واړه کلــے چــې غمجــن لاړې تــه

تــا پــورې چــا بــه چــې څــه ټوقــه مســخره کؤلــه
تــا بــه څــواب کښــې معمــولي شــانتې ګیلــه کؤلــه
یــا بــه چــې چــا درتــه څــه سپکه او ســپېره کؤلــه
تــا بــه پــه خپلــه هــم خبــره د هغــه کؤلــه

خــوار نــهٔ شــې تاتــه جــوړې مــونږه خنــدني ښــکارېدو
لېــونے نــهٔ وې درتــه مــونږه لیــوني ښــکا رېــدو

خــوار نــهٔ شــې ســتا جــوړې زمــونږه دنیــا خوښــه نــهٔ وه
مــونږ لېــونے ګڼلــې ســتا خــو رښــتیا خوښــه نــهٔ وه
د خـــوار غریـــب دې بـــې اثـــره ژړا خوښــه نــهٔ وه
د دنیــا دارو دې مســـتې او خنـــدا خوښـــه نـــهٔ وه

نو تا نه ځان ته اميري نه غريبي خوښه کړه
تا زندګي په هوښياری، د لېوني خوښه کړه

مهجوره دروميي په څه شان د شاه زلمي جنازه
ځي هديرې ته عجيبه غونډې شاهي جنازه
نۀ ايساريږي چرته هم په لاره ځي جنازه
نن په اوږو د عقل ځي د لېوني جنازه

د زندګۍ ستغې سپېرې يې لکه خوب تېرې کړے
ښې په مزه يې ورځې شپې د لېونتوب تېرې کړې

«««««»»»»

يادګېرنه: زمونږ په کلي کښې يو لېونے ؤ- هغه په کال 1974م کښې په حق ورسېدو- هسې خو ډېر خلق مري او پېدا کيږي خو د ځينو خلقو مرګ د سړي څه داسې احساسات راولړزوي چې درک يې هغه ته خپله هم نۀ لګي- ما دا مرثيه يا نظم د څه داسې احساساتو لاندې ليکلے دے ځکه چې لېونے زما څه تربور عزيز نه ؤ-خو لېونے ؤ او زمونږ د کلي ؤ- دغه وخت زۀ هائي اسکول وانه کښې ووم-

# د خان جېل

ټـــي وي هـــم ســـتا مخـــامخ د ے درتـــه ا ے ســـي لګېـــدلے
کـه پـه سـور اور کښـې سـوځېږي غـریـب ا ے سـي څـه لیـدلے
پـــولیس ګـــپ درســـره ولـــي خانـــه دغـــه ســـتا ریمانـــه د ے
خـو بیـا هـم د جېـل نـه تللـودې تـا هـر وختـې ډیمانـه د ے
سـتاپـه جېـل کښـې اوسـېدل خـو یقینـي چـې ډېـر اسـان دي
ستا په جېـل کښـې خو راحت د ے خوشحالي ده سهولت د ے
کـه رښـتیا رابانـدې وایـې سـتا خـو جېـل نـه د ے جنت د ے
سـتا پـه جېـل کښـې اوسـېدل خـو یقینـي چـې ډېـر اسـان دي
حـــال د هغـــو خلقـــو ګـــوره چـــې التـــا یـــې اوېـــزان دي

د اسې جېل کښـې دې تېر کړ ے کاش چې ټول عمر مهجور و ے
دغـــه جېـــل ســـره د ټولـــو ســـهولیاتو زمـــا کـــور و ے

«««««»»»»

## غمجن اختر

سحر وختي چې خوشحالۍ دلۍ دلۍ راغلې
چې رپوي سرې لوپټې هغه سيلۍ راغلې
ښکليو جامو کښې شو ارمان د هر ماشوم ترسره
سر په سندرو دي د چم ګاونډ جينۍ راغلې
فضا خوشبويه چاپېر چل شو سندريزه غوندې
د خوشحالو ډکې لمحې د زندګۍ راغلې
د خونده ډک دے خوندور او بختور سحر دے
د هرې خوا نه د اختر مبارکۍ راغلې

دا د جذبو د خوشحالو او سرمستو اختر دے
خو که رښتيا وايمه دا بس د هغو اختر دے

د چا چې شپې ورځې بدلې رابدلې نۀ دي
د چا چې کور د قسما قسم خوراکونو ډک دے

چې پــه تنـدي يــې پرخــې پرخــې خــولې نــهٔ را دروـمــي
د چـــا چـــې ژونـــد د عشـــرتونو راحتونـــو ډک دے
بايـــد هغـــه دې نـــن لاســـونه پـــه نکريـــزو ســـره کـــړي
د چـاچې کـور د بــې غمــۍ سـپين مرونـدونو ډک دے
هغـــه خـــو ژاړي کـــه اختـــر د خنـــداګانو ورځ ده
پـــه غـــم لـــړلے د چـــا ژونـــد چـــې لـــه غمونـــو ډک دے

زړهٔ چــې غمجـن وي د خوشــۍ پـه نـن سـحر کښـې څـه دي
څـهٔ شـو کـه نـوم يـې د اختـر دے پـه اختـر کښـې څـه دي

نـــن زمـــا ورونـــه بنـديوان دي پـــه پـــردي وطـــن کښـــې
زهٔ خبـــر نـــهٔ يـــم چـــې د دويـــي بـــه دا اختـــر څنګـــه وي
خـــو ســـوچ کـــوم چـــې اخـــر دوئـــي هـــم انســـانان دي ربـــه
دوي هـــم پـــوهيږي چـــې بـــه دلتـــه نـــن ســـحر څنګـــه وي
ســـر پـــه زنګـــون بـــه څـــوک پـــه خيـــال کښـــې محبوبـــه يـــادوي
او څـــوک بـــه ژاړي چـــې زمـــا بـــه نـــن ټبـــر څنګـــه وي
دوي پـــه اختـــر هـــم اغوســـتے نـــهٔ شـــي نـــن نـــوې جـــامې
ســـوچ بـــه کـــوي چـــې بـــه نـــن حکـــم د افســـر څنګـــه وي

زۀ هـــم ســـپېره یـــم د اختـــر پـــه ورځ ژړا کومـــه
دچـــا پـــه یـــاد کښـــې دا عبثـــه مشـــغولا کومـــه
اختـر خـو نـوم د خوشـحالو دے خـو هغـو تـه نـۀ دے
څـوک چـې د بـد نصـیب د لاسـه پـه بـد حال پراتـه دي
څـوک چـې د یـوې یـوې آنـې خبـر غـوا ړي پـه نـوم د الله

پـه خـاورو خـړ یـې لاس نیـولي کـوي سـوال پراتـه دي
د چـــا د ژونـــد ملګـــري لاړل همېشـــه د پـــاره
د چـــا کورونـــه شـــو تـــالا والـــه کنګـــال پراتـــه دي
د سیاســـت د لاســـه کونـــډې د چـــا خوینـــدې لونـــه
او د چـــا ورونـــه ترمـــې ترمـــې پـــه بنګـــال پراتـــه دي

مهجـوره څـه؟ کـه تـش بـه نـوم پـه ټـول وطـن اختـر دے
د ژړا ډک پـــــه غـــــم لـــــړلے او غمجـــــن اختـــــر دے

«««« »»»»

یادګېرنـه: مـا دا نظـم د بنګلـه دېـش د بېلېـدو پـه وخـت لـیکلے ؤ-کلـه چـې زمـونږ نـوي زره(90000)فـوځ د هندوسـتان پـه بـېلا بېلـو کېمپونـو کښـې د جنګي قېدیانو ژوند تېر ؤ-

## يؤ شاعر ملګري ته وصيت

که بيمار يم لږ مې خيال په ماه وسال که
د اويا کالونو تېر شومه تۀ خيال که
زۀ د منـي زيــړه پاڼه يـم د ونې
چې در پرېوزم ځناور به مې پائمال که
لکه ډېره ښکلې پاڼه د سيمرغ
د يادونو په کتاب کښې مې سنبال که
د حالاتو له سيلۍ مې مرقد ژغوره
هسې نۀ چې خاوره يوسي ما کنګال که
د شعرونو مقبره کښې زما قبر
درنه ورک نۀ شي زيارت يې کال په کال که
که دې وس ورسېد جوړ ترينه کتاب که
ورک شعرونه راپېدا مې له عيال که
دغه کار ته تر مودې مۀ ګوره

ابتــدا یــې کــه دې زړۀ غــواړي امســال کــه
ډېــره ښــکلې دیباچــه پــرې نوشــته کــړه
د یــادونو تــرې چــاپېره یــؤ دېــوال کــه
چــې کتــاب پــرې دګلونــو باغیچــه شــي
هغــه ښــکلي ښــکلي ټکــي اســتعمال کــه
د یــارۍ مــې دومــره حــق دربانــدې نشــته
خــو تــۀ خبــر دغــه کــار وکــړه ماخوشــحال کــه
پــه قیامــت کښــې چــې یــؤ بــل تــه غــاړېوځو
دغــه کــار بــه د یــارۍ هــم اســتدلال کــه
پــه ســلګو د زنکــدن کښــې بــه زۀ وایــم
چــې مهجــور پــه دا ښــېګړه لازوال کــه

«««««»»»»

یؤ شعر

ګــل چــې ســتایې ازغــي هــم بــد مــۀ ګڼــه
دا خــو ازغــي دي چــې ګلونــه ژغــوري

# بغاوت

وختــه چــې بیــا دې ورځــې شــپې ځــوریږي
ویـــنم او وایمـــه چـــې ښـــې ځـــوریږي
ســـتا پـــه تنـــدي اې کائناتـــه ګـــورم
عـــن چـــې وړې وړې ذرې ځـــوریږي
دې وینـــو څښـــکونکي ازمـــري تـــه زمـــا
هـــم د حـــالاتو ارادې ځـــوربږي
خبـــر دے خـــو تـــوان د دې لیـــدو نـــۀ لـــرم
چـــې حیـــا نـــاکې پښـــتنې ځـــوریږي
خدایـــه آلېچـــې فـــولادي غوارمـــه
چـــې یـــې مړونـــد تـــه زولنـــې ځـــوریږي

د وخـــت ظالمـــه ډېـــر منـــت دې کـــوم
بـس کـه بـس نـور مـې پـه ګسـو مـهٔ وهـه
ډېـر اوشـو ډېـر اے سـامراجي ظالمـه
نـور مـې کـاروان د تلوسـو مـهٔ وهـه
دا وینـــې زوې د غریـــب دي غټـــه
دا شـراب ګـوره پـه کاسـو مـهٔ وهـه
د زور ګېـرې نشـه کښـې مسـت سـړیه
بـس د ے نـور حـق د پښـتنو مـهٔ وهـه

نـهٔ منـې؟ ښـهٔ ده نـو اوس خپلـه ګـوره
اوس د اوچتـو بنګلـو درز تـه ټینـګ شـه
منـت زاري تـهٔ د هیچـا نـهٔ منـې
اوس د پښـتون د ټوپـک ډز تـه ټینـګ شـه
مهجـوره! اوس دې زغمـي وار د پښـتون
راغلـې مېدان تـه اوس دا ګـز تـه ټینـګ شـه

«««««»»»»

یادګېرنـه:ما دا نظـم هغـه وخـت لـیکلے ، کلـه چـې بهټـو صـېب د هغـه وخـت صوبه سرحد (پښتونخوا) او بلوچستان حکومتونه مات کړل-

# د پرېغل د څوکې بازه

د غلـــــيم د ارادو د زړکـــــو شـــــلې کــــړه وزرې
شـابه بيـا پـه مخـه واخلـه دغـه شـنې سـپينې کـونترې
د حـــالاتو ګـــډ وډي تـــه د هـــوا مخـــالف زور تـــه
چــې زړۀ وانــۀ چــوې ګــوره تــه الــوت کــړه لــرې لــرې
بيـــا پـــه زور دې وزرو يـــو فضـــا کـــړه ځـــان ســـازه
د پرېغــــــــل د څــــــــوکې بــــــــازه

نــا خبــرې د حملــې نــه ســبل ســبل شــنې ډبــرې ګرځــي
وزر جــوړ کــړه يـۀ ګــزار تــه چــې يـۀ يـۀ شــې ډبـرې ګرځـي
غـــړې چګـــې دې نيـــولې مـــردار خـــورو پـــه مـــردارو
زلزلـــه يـــې پـــه دنيـــا شـــه ټپوســـان بـــې ويـــرې ګرځـــي
تـــۀ باچـــا يـــې د مارغـــانو اراده وکـــړه درازه
د پرېغــــــــل د څــــــــوکې بــــــــازه

تـــهٔ بـــې خوفـــه بـــې خطـــره د پرېغـــل نـــه تـــر شـــواله
د ځـــوانۍ پـــه طاقـــت ګرځـــه د جنـــوب نـــه تـــر شـــماله
اســـتعمار د ازمـــري هـــم کـــړه هوســـۍ تـــه بـــې مجالـــه
هـــر غـــرور هـــره مســـتي هـــم چـــې د شـــېر اوځـــي لـــه خیالـــه
ســـتا نـــرے غونـــدې اواز د ے زوراورلـــه هـــر اوازه
د پرېغـــــــــــل د ثـــــــــــوکې بـــــــــــازه

ستا پنجې دي زمـا خوښـې نـوم دې هـم د ے پـه مـا ګـران
لـه خوښـۍ نـه پـه خنـدا شـم تـهٔ چـې ګرځـې پـه اسـمان
دبـدبې تـه دې حېـران یـم بـې وقعتـه کـړي مارغـان
یـؤ وخـت داسـې ؤ چـې وو سـتا هـر صـفت د مسـلمان
خـو افسـوس چـې هغـه لاړل نـا خبـر یـو مـونږ لـه رازه
د پرېغـــــــــــل د ثـــــــــــوکې بـــــــــــازه

ســـتا ګـــزار چـــې تنـــدریز د ے پـــه دنیـــا د شـــنو کـــونترو
ؤ تســـخیر د کائنـــات د صـــحابه رض نیـــت بـــې وزرو
تمنـــا د شـــهادت تـــه ضـــرورت نـــهٔ وي د زغـــرو
شـــهبازي ګـــزار تـــه نـــهٔ وي وخـــت د چغـــو د خبـــرو

نــاخبر ۀ ابــو جهــل هــم لــه مغــوذرض او لــه معــاذه رض
د پرېغـــــــــــل د څـــــــــــوکې بـــــــــــازه

پـه محـل کښـې مناسب نـۀ دي سـتا ځـالې او سـتا ځلـې
ډېـر بـه بـد ښـکاري مـاڼو کښـې بـازه سـتا د ځـالې خلـې
اَشِـــد اءُ عَلَـــى اَلکُفـــارِ رُحَمَـــاءُ بيَـــنِهم يا ســـت
بـَازان چـا نــۀ دي ليــدلي چــې د يــۀ بــل ســره نښــلي
د مرحــوم امــت صــفت د ے تاکښــې اوس هــم تــرو تــازه
د پرېغـــــــــــل د څـــــــــــوکې بـــــــــــازه

تــا تــه اوس هــم شــابه يــاده شــهبازي د پــلار نيکــۀ ده
هــاى افســوس زمــونږ نـۀ هېـره نـن ماضـي دپـلار نيکـۀ ده
زنـــدګي مـــو کلـــه يـــاده حجـــازي د پـــلار نيکـــۀ ده
تـــا تـــه يـــاده پـــه ښـــۀ ډول زنـــدګي د پـــلار نيکـــۀ ده
تـــۀ د وخـــت د تېـــر بـــدو نـــه ځکـــه ګرځـــې بـــې نيـــازه
د پرېغـــــــــــل د څـــــــــــوکې بـــــــــــازه

ژاړم ځکـــه نشـــانې د تېـــر امـــت ويـــنم پـــه تـــا کښـــې
د بخښـــلو او وژلـــو وو خويونـــه پـــه هرچـــا کښـــې

تـﺉ یـﺅ نخښـﻪ د مرحـوم امـت یـې پـاتې پـﻪ دنیـا کښـې
سـتا جـرات سـتا حوصـله ده پـﻪ امـت د مصـطفیٰ کښـې
سـتا پـﻪ شـان پـﻪ هـر باطـل بـﻪ وه حملـﻪ د دوي ممتـازه
د پرېغـــــــــل د ځـــــــــوکې بـــــــازه

سـتا پـﻪ زور کښـې د وزرو عجیبـﻪ شـان زور ګیـري ده
پـﻪ پنجـﻪ کښـې چـې سـتا راشـي دایـې نخښـﻪ دمرګـي ده
سـتا صـفت خېبـر شـکن دے سـتا حملـﻪ هـم حېـدري ده
د مارغـــانو پـــﻪ ســـومنات دې اراده د غزنـــوي ده
د مهجـــور د زړګـــي ســـره د محمـــود د زړﺉ ایـــازه
د پرېغـــــــــل د ځـــــــــوکې بـــــــازه

«««««»»»»

یﺅ شعر

اے شـــپونکیه د شـــنو غرونو ستاشپېلۍ کښـــې زنـــدګي ده
اســـویلے پکښـــې غرېـــبي اســـوېلے ســـتا د زړګـــي ده

## دهقان ته

پېغبمـــر د خوشــحالي دې تـــا محنـــت د ے
د ژونـــدون باعـــث د نـــورو ســـتا همـــت د ے
د وطـــن پـــه خـــړو خـــاورو کښـــې لـــوبېږې
ســتا مقــام پــه خــړو خــاورو کښــې اوچــت د ے
ا ے دهقانـــه د خـــوارو نـــه دې قربـــان شـــم

تـــهٔ د ژونـــد عـــېش و عشـــرت څـــه پېژنـــې
تـــــهٔ خـــــوب ارام د ســـــره نـــــهٔ پېژنـــــې
څـــه شـــے چـــې تـــهٔ ترېولـــو ښـــهٔ پېژنـــې
هغـــه ســـتا کـــار د ے هـــم يـــې تـــهٔ پېژنـــې
د دې څېـــرې بـــڅره جـــامو نـــه دې قربـــان شـــم

چـــې ســـېراب دې پـــرې فصـــلونه د وطـــن کـــړل
چـــې پـــرې زيـــات د نعمتونـــه د وطـــن کـــړل
چـــې ســـېوا دې پـــرې خوندونـــه د وطـــن کـــړل
خـــړ پتـــې دې چـــې باغونـــه د وطـــن کـــړل
ســـترېه وروره د خولـــو نـــه دې قربـــان شـــم

«««««»»»»

# پښتون ته

اے بهادره غېرتي پښتونه
اے ننګياليه سرحدي پښتونه
اے د اسلام او د پښتو خاونده
چې يې شېدا په ازادي پښتونه

زړۀ خو مې غواړي چې دې وستايمه
خو دا لفظونه به له کومه غواړم
پښتونه ځوانه که د پلار غوندې شوې
نو ستا په پلار پسې به ونۀ ژاړم

پښتونه ځوانه ځواني ښکلې لرې
چې خفه نۀ شې څو عېبونه هم شته
منم چې ژبه خو د پلار وايې تۀ

د پلار دې نور څو میراثونه هم شته
د پلار شرې هم درته پاتې څو ده
ګوره چې هلته پتلونونه هم شته؟

پښتونه ځوانه ابدالي څوک ؤ
تاته معلوم دے ننګيالے پښتون ؤ
څه لرې ياد شېرشاه سوري څوک ؤ
هو هو خبر يې بريالے پښتون ؤ
وروره خوشحال د اکوړي څوک ؤ
افرين پوی يې تور يالے پښتون ؤ
پښتونه ځوانه ګوره پړ نه شې تهٔ
د زمري زويه چې ګيدړ نهٔ شې تهٔ

ځان ته دنيا چې کوم حېرانه نهٔ کړي
دا بې همته به پښتون څنګه وي
خپله لېلىٰ چې له سر ګرانه نهٔ کړي
داسې عاشق رښتيا مجنون څنګه وي
چې د غليم خونه پرې ورانه نهٔ کړي
اثر د هسې ځيګر خون څنګه وي

چې صدقه خپل زر له ځانه نۀ کړي
دغه قارون دے بل قارون څنګه وي

پښتونه ځوانه پې د مور یادوه
آ غېرتي شوده خو تا څښکلي دي
انجام یې څه شو هغه نور یادوه
کوم چې اوده له دې دنیا تللي دي
تۀ د نیکانو هغه شور یادوه
چې له دنیا په شور د چا تللي دي
چا کړه اباده غېر اباده دنیا
خو هائے افسوس چې نن د چا ده دنیا
زۀ چې شم ځوان نو ابیاري به دې کړم
د پښتون خاورې دا لوظونه کؤم
کوشش بیا بیا د ابادۍ به دې کړم
لوظ کؤم څو قسمونه کؤم

د حیا دارو په حیا مې قسم
د وفادارو په وفا مې قسم
د عاشقانو په ژړا مې قسم

د حسينانو په ادا مې قسم
د چګو غرونو په هوا مې قسم
او د شنو ونو په نخا مې قسم
د سروګلونو په ګډا مې قسم
د بلبلانو په غوغا مې قسم
د خوشحالو په شنه خندا مې قسم
او په موسم د پربغل خوا مې قسم
په انتظار د چادچا مې قسم
او د بيلتون په ورځ رڼا مې قسم
په کار نامو د پېوندا مې قسم
په سياست د شهزادا مې قسم
په دغه خپل بېګا سبا مې قسم
د ازادۍ په ابتدا مې قسم

په بې وسلې کړې غزا مې قسم
او دايمان په ولولا مې قسم

چې لا تر اوسه امزريان پکښې شته
چې لا تر اوسه مومنان پکښې شته

چې لا تر اوسه مېرنيان پکښې شته
چې لا تر اوسه تور زنان پکښې شته
دا په مونږ ګرانه لکه ځان خاوره
زمونږ د خپل پښتونستان خاوره

په دا قسم که دروغژن ومه زۀ
پښتونه ځوانه بيا به وژن ومه زۀ
که په ريا سره غمجن ومه زۀ
بيا به په خوے خصلت پمن ومه زۀ
اوس يم حېران کومه قيصه اوليکم
زۀ ستا صفت که مرثيه اوليکم

«««« »»»»

يادګېرنه دا نظم ما په کال 1964م کښې ليکلے ؤ- چې زۀ د اتم جماعت طالب علم ووم- دغه څه خاص معياري نظم خو نۀ دے خو زۀ يې بغير د څه اصلاح او کمي بېشي نقل کوم- په دې خيال چې لوستونکو ته هم د اتم ټولګي ډېر هلک شاعر اندازه اوشي- او ماته هم د خپلې ډېرې لرې ماضي څه يادګېرنه اوشي-

يـﺆ امريکـي ﺆ بـل تــه وبـل چـې فکـر وړے يمــه
قيصـه جنجـال تـه ورځ پـه ورځ د دې اولـس سـره ځـي

مـا وئيـل چـې دا پنجـابے نـﺉ دے چـې تيزونـه کـوي
پښــتون سـنګر تـه چـې ورځـي نـو د اودس سـره ځـي

«««»»»»

ســوے زړګــے يــې چــې لــوګے کــوي
هغــــه مــــين تـــل اســـويلے کـــوي

وختـــه ناتوانـــه بوډاګـــان څـــه کـــوې
تـــا ســـره منـــډه بــــه ځلمے کـــوي

«««»»»»

پــوے د ژونـد نـﺉ پـه بيګـا نـﺉ پـه سـبا شـوم
ان تـر دې چـې کـم وبـېش اوس د اويـا شـوم

د ځـوانۍ ارمـان سـلګۍ وهـي پـه زړﺆ کښـې
د ځـــوانۍ ارمـــان کومـــه چـــې بـــوډا شـــوم

««««»»»»

غوځول د پردو زوړونو اسان کار دے
د زخمي زوړونو ملهم پټې مشکل دي

راشه دا کارونه زده کړه چې سړے شې
سړیتوب د غوځو زړونو رغؤل دي

وانه کال 1969م

«««««»»»»

بیلوي سره دوه ورونه په بېګا یا په سبا کښې
عجیبه غوندې منظر دے په نقشه د پښتونخوا کښې

دېوال هسک دے ترې دیدن ته دغړې هسکول ګران دي
په ارمان به یؤ بل ګورو د سپوږمۍ ښکلې رڼا کښې

«««»»»»»

ته پرونۍ قیصه هم مه ماته کوه
خو ځار دې شم وعده هم مه ماتوه

دې تا په یوه مسکاماتیږي ګله
ښکلیه زما توبه هم مۀ ماتوه

«««««»»»»

د سیاسـت د پـېچ و تـاو پـه میـنځ کښـې
خبـره ورځ پــه ورځ جنجــال تــه درومــي

د جمهوریـــت د نـــاوې تـــرۀ خفـــه د ے
د اقتـــدار ډولـــۍ بنګـــال تـــه درومـــي

جمرود کال 1970م

«««««»»»»

هـره ورځ دې چـې پـه نـوي رنـګ کښـې ویـنم
ســتا د حُســن ورځ پــه ورځ موسـم بـدلیږي

ګـل چـې کومـه جامـه واغونـدې خـو ګـل وي
خونــد کــوي چــې هــر ســحر شــبنم بـدلیږي

جمرود کال 1970م

«««««»»»»

چـې تــا وویـنم اشــنا نــو ســوچ مــې یوســي
ځــومره ښــکلي دې د ســترګو دا بانــه دي

تـۀ خـو یـې زمـا پـه زړۀ کښـې خـو تـۀ وایـه
ښـکلیه یـاره چـې دې تـا پـه زړه کښـې څـه دي

جمرود کال 1970م

«««««»»»»

ستـــرګې هـــر خـــوا اړوم د چـــا پـــه تمـــه
د زخمـــي زړګـــي زمـــا نـــه درمـــان ورک دے

خـــو ارمـــان دے چـــا تـــه پتـــه نشـــته خدايـــه
چـــې زمـــا نـــه څـــومره ښـــکلے جانـــان ورک دے

«««««»»»»

اشـــنا دا څـــه عجـــب ســـړے يمـــه زۀ
شـــومه جـــوت پـــه عاشـــقانو کښـــې زۀ

بيمـــار دې زۀ يمـــه خـــو تـــا غـــواړم
د هســـپتال پـــه بيمـــارانو کښـــې زۀ

نوښار کال 1973م

«««««»»»»

## ليډرانو ته

مـــونږ تـــه لالـــچ د دولـــت مـــۀ راکـــوئ
زمـــونږ دا خپلـــه غريبـــي ښـــۀ ده

خـــو مـــونږ لـــه کـــاره پـــه جلســـو مـــۀ باســـئ
زمـــونږ دا خپلـــه مـــزدوري ښـــۀ ده

واړه کال 1969م

«««««»»»»

د سـړي خـو ،،هـو،، او ،،نـا،، وي د سـړي
هـم بېګـا هـم يـې سـبا وي د سـړي

تـش پـه ږيـره پـه برېتونـو هـم کـار نـۀ شـي
چـې خويونـه زنانـه وي د سـړي

وانړه 1969م

«««« »»»»

يـۀ تربـور مـې پـه ،،تورمانـدې،، دا خبـره وکـړه
کـور کښـې د مـړه وے خـو چې دومـره لـرې تللـي نـۀ وے

مـا ورتـه اووې چـې لا اوس هـم ډېـر راغلـي نـۀ يـو
وې يې چې کـوردې مرګـي رنـګ کـړے چې ښاغلي نـه وے

ستمبر کال 2004م

«««« »»»»

څکـه نـه کسـي زمـا د سـترګو کسـي
چې ړانـده شـو د هـر چـا د سـترګو کسـی

زمـا کسـي دې نـۀ کسـي د چـا کسـي
کـه مـې کسـي د اشـنا د سـترګو کسـي

مډل اسکول کړمه کال1964م جماعت هشتم

«««« »»»»

چــې دې پــه زړۀ بانــدې داغونــه راکــړل
بیـــا دې رټلـــي ځوابونـــه راکـــړل

غلـے سـړے یـم پـه خلـه نـۀ وایمـه
ګنـــې تـــا ښـــومره تکلیفونـــه راکـــړل

مډل اسکول کرمه کال1964م جماعت هشتم

«««««»»»»

عشـــق مـــې رښـــتونے دے دعـــویٰ کومـــه
کـــه ســـربدل د یـــؤ دیـــدار غـــواړي

خـــو دا قیصـــه خـــو راتـــه ګرانـــه شـــوه اوس
چـــې د خـــان لـــور ده مـــوټر کـــار غـــواړي

مډل اسکول کرمه کال1964م جماعت هشتم

«««««»»»»

چـــې پښـــتو د کلیوالـــو پـــه شـــان نـــۀ کـــړې
بیـــا پښـــتون چـــې ځـــان تـــه اونـــۀ وائـــي ګـــوره

د ترلـــي مـــې د کمڅـــو ســـره ســـم نـــۀ دي
ســـتا دا ښـــکته للیـــدلي بریـــت تربـــوره

مډل اسکول کرمه کال1964م جماعت هشتم

«««««»»»»

اشـــنا چـــې نـــۀ منـــې زمـــا خبـــرې
ښـــۀ ده نـــو خوښـــې مـــې دي ســـتا خبـــرې

خـــدا ایـېګو اشـــنا چـــې څـــه خبـــره خـــو ده
چـــا درتـــه کـــړې دي نـــن بیـــا خبـــرې

«««««»»»»

هـــیڅ یـــې هـــم قـــدر د جمهـــور نـــۀ کـــوي
مســـتر بهټـــو د کرســـۍ وېـــش غـــواړي

د جمهـــوري ګټـــې امیـــد یـــې نشـــته
ځکـــه مجیـــب اوس بنګلـــه دېـــش غـــواړي

«««««»»»»

سیاســت پــه عاشــقۍ کښــې هــم شــروع شــو
مســـاوي تقســـیم د ښـــکلیو هـــم پکـــار دے

څـــوک ســـاړه ســـاړه اهونـــه کـــوي بیـــا هـــم؛
یـؤ نـیم کـس د ټولـو ښـکلیو جـاګیر دار شـي

«««««»»»»

ګرځـې مـې تـل پـه زړۀ کښـې څـه غـواړي
هـن اشـنا در واخلـه زړۀ کـه زړۀ غـواړي

دا بـه لـه مـا هېڅکلـه پـوره نـۀ شـي
تـۀ تنکـي زلمـي پـه وينـو سـره غـواړي

«««««»»»»

پـلار تـه دې وايـه چـې انکـار اونکـړي
پښـتون زلمـے يمـه زۀ مـړي کـؤم

خـو زۀ هغـه پښـتون هـم نـۀ يمـه چـې؛
پـه سـرو منګلـو پـه تـا پـړي کـوم

«««««»»»»

چـې پښـتونخوا پـه وينـو رنـګ شـوه مـا څـه ونـۀ ليکـل
کوڅـه کوڅـه کښـې مېلـه ړنـګ شـوه مـا څـه ونـۀ ليکـل

مـا وې دځـان سـره بـه تولـه پښـتونخوا ژړوم
خـو دقلـم څوکـه مـې زنـګ شـوه مـا څـه اونـۀ ليکـل

«««««»»»»

زمـــونږ خبـــره بـــه وي بلـــه بلـــه
خـــو تـــرې دنيـــا جـــوړوي بلـــه بلـــه

زمـــا يـــوه بـــس ده هغـــه نـــور دي اشـــنا
چـــې هـــره ورځ خوښـــوي بلـــه بلـــه

وانه کال 1969م

«««««»»»»

مـــا ورتـــه وېـــل چـــې ښـــۀ د کـــار خلـــق دي
د ښـــۀ کـــردار د ښـــۀ ګفتـــار خلـــق دي

جانـــان مـــې رو غونـــدې پـــه غـــوږ کښـــې اووې
،،دا شـــاعران هـــم ښـــۀ وزګـــار خلـــق دي،،

«««««»»»»

مـــدام د ننـــګ او دغېـــرت خبـــرې
او د خپـــل ملـــک او د ملـــت خبـــرې

خلـــق دې خېـــر د ے هرڅـــه هرڅـــه وائـــي
مـــونږ بـــه کـــوو د محبـــت خبـــرې

«««««»»»»

حـــد راکـــوه راتـــه حدونـــه مـــهٔ ږده
د بـــر ښـــهٔ مـــې پېژنـــې شـــرطونه مـــهٔ ږده

پـــه ظلـــم مـــهٔ ګـــوره همـــت د پښـــتون
پـــه دا کـــوه کـــن دپاســـه غرونـــه مـــهٔ ږده

وانه کال 1969م

««««»»»»

ښـکلیه سـبا بـه خـدا ے زده کلـه راځـي
لېـــونے زړهٔ خـــو مـــې لا نـــن ژاړي

د مـــرګ پـــه غـــم نـــهٔ ده ژړا د مهجـــور
خـــو پـــه بـــې یـــاره ژنکـــدن ژاړي

وانه کال 1969م

««««»»»»

مـــا وې تنهـــاکې بـــه مـــې اووینـــې د پښـــو دلبـــره
ابلـې پښـې سـتا د کـور پـه خـوا کښـې ګرځېـدلے یمـه

د ختـــو جـــوړ کورونـــه وران د چـــا د لاســـه دي پـــروت
پـــه رنګـــه پنګـــه پښـــتونخوا کښـــې ګرځېـــدلې یمـــه

««««»»»»

د غېرت په سر بازۍ کښې چې شي وروستو
شرموي چې د قام غړي په شرمونو

د ترلې مې حياداري کمځې ښې دي
که تربور مې څو نازيږي په برېتونو

وانه کال 1969م

«««««»»»»

د دنيا په هر يؤ ښکلي څيز مين يم
زۀ په حُسن مين يم په خلقو نۀ

هر څښتن د تورو سترګو زما يار دے
زۀ په وارو مين يمه په يؤ نۀ

«««««»»»»

ترينه اوري که تروې ترخې خبرې
خو حق تل خوري د باطل سره ډغرې

تاريخ وياړي د روښان په ملنګانو
که لښکرې د اکبر وې زوراورې

«««««»»»»

اې د وطـــن غريبـــه پېژنـــې څـــه؟
ســتړګې ســره دې د محنــت ټيټــې دي

دا چـــې دې ډکــې ســتاله وينــو زوو
غريبـــه ســـتا دښـــمنې دا خپټـــې دي

«««««»»»»

څــوک غمجــن دي چــې ببګــا لــه بــه زۀ څــه خــورم
د چـــا نـــه خوښـــېږي دا چـــې بـــه څـــه څـــه خـــورم

څـــوک حېـــران د خوراکونـــو انتخـــاب تـــه
څـــوک خفـــا چـــې بـــه ډوډۍ او کـــه وابـــه خـــورم

جمرود کال 1970م

«««««»»»»
بـس کښـې چـې مړ شـي پنجـابې نـو ورکـړې لـس لکـه تـه
ځکـه چـې دا د ې پنجـابې او پنجـابي هـم قيمتـي د ې

چــې پــرې زاړه کوټــه راپرېــوځي او پښــتون مــړ شــي
نــو پنځــه لکــه دي ډېــرې پښــتون کــم قيمتــي د ې

«««««»»»»

لـه کـور چـې اووځـي پښــتنه بـې پــردې
جـامې یـې هـم وي دا سـې سـپکې غونـدې

چاتــه بــه ښــکلې لکــه حــوره ښــکاري
خــو ماتــه ښـکاري د شیشــکې* غونــدې

*شیشکه مسید و کښې نخرې ته وائي-

«««««»»»»

سـړي تـول پـه نـوم سـړي دي خـو ښـاغلي دي تـول چرتــه
دا ازلـــــي برخـــــه رســـــي یـــــؤ نـــــیم بختـــــور تـــــه

لرپښــتون کــه سـترګې پټـې کـړې چـې خبـرد ے زهٔ خـوبچ یـم
د بمونـــو د مـــور بـــوئي بـــه را رســـیږي پېښـــور تـــه

«««««»»»»

کشلي ځووني زيږه پګړۍ دې په سر
داسې کشيژی لکه وليژ دې چې
په دوا کي جينګ د مني زيږې ګېدۍ

«««««»»»»

زۀ تا په خوب کښې تۀ ماخوب کښې وينې
چې زۀ ځان خوب کښې تۀ ځان خوب کښې وينې
راشه بدل کړو چې خوبونه سره

«««««»»»»

دا ببر سر خيرې ګرېوان يې ولې ؟
ما وې چې دا لېونے ستا مينې کړم
اشنا مې وېل چې دهشت ګرد ليده شې

«««««»»»»

اشنا چې زۀ او تۀ یو ځاے شو سره
نو خیال کوه چې بد باطنه رقیب
پام کوه سرجیکل سټرایيک اونۀ کړي

«««««»»»»

ما ورته وئیل چې دومره ښکلے یې تۀ
چې ستا په شان به په جهان کښې نۀ وي
اشنا مې وېل چې چاپلوسي مۀ کوه

«««««»»»»

خـتم شد